يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا

# د اولاد روزنه



مؤلف:حمدالله «شاکری»

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا

# د اولاد روزنه

## عیقدتي،عبادتي ،اخلاقي او بدني

مؤلف : حمدالله شاکري

# لړلیک

## لومړی فصل

**لړلیک ........................................................................ 1**

په اسلام کې د اولاد روزنه ........................................................................ 11

**د تربیه تعریف : ........................................................................ 11**

طفل : ........................................................................ 11

**د اولاد د روزنې او تربیت اهمیت : ........................................................................ 11**

**د اولاد د تربیت فضیلت : ........................................................................ 12**

۱- والدینو ته د اولاد په صالح علم کې اجر دی : ........................................................................ 12

۲- د مرګ څخه وروسته د صالح عمل دوام : ........................................................................ 13

۳- د لوڼو د تربیت اجر : ........................................................................ 14

۴- په دنیا کې عزت او په نیک نوم یادول : ........................................................................ 14

۶- د اولاد د پاره تر ټولو غوره ډالۍ : ........................................................................ 15

**اول – د صالحې ښځې او صالح خاوند انتخاب ........................................................................ 16**

د صالح اولاد بنسټ د صالحې ښځې انتخاب دی : ........................................................................ 16

۱- سالمه عقیده ........................................................................ 17

۲- د میړه اطاعت: ........................................................................ 17

۳- د خیر په کار کې د میړه مدد کول ........................................................................ 18

۴- دینداره ښځه نیکوکاره او صالحه وي ........................................................................ 18

٥- دينداري د جنت د دخول وسيله ده............................................. 19

د صالح اولاد بنسټ د صالح خاوند انتخاب دی:.................................. 20

**دوهم فصل**

**د جنين حقوق: ............................................................ 20**

**دريم فصل**

**اول – د پيدائښت زيرى او مباركي: ....................................... 22**

**دوهم – په غوږ کې اذان : ................................................... 24**

په غوږ کې د آذان کولو حکمت :.............................................. 24

**دريم – د سر د ويښتانو خريل ............................................... 25**

**ځلورم ، عقيقه: ........................................................... 26**

د عقيقه حکم: ................................................................ 26

د عقيقې شروط : ............................................................. 27

د عقيقې د غوښې حکم : ...................................................... 28

د عقيقې ځينې فوائد : ......................................................... 28

**پنځم – د نوم ايښودل : ..................................................... 29**

څه ډول نوم ايښودل په کار دي ؟ ............................................ 30

غوره نومونه : ................................................................ 30

مباح نومونه................................................................... 31

حرام او مکروه نومونه:........................................................ 31

مکروه نومونه : ........................................................................ 32
عین الله ، وجهه الله او یدالله نومونه : ...................................................... 34
**شپږم – د ماشوم سنت کول ........................................................... 35**
د سنت کولو حکمت: ........................................................................ 36
الف): دیني حکمت :.......................................................................... 36
ب) : صحي حکمت :.......................................................................... 36
**اوم – د شپډو ورکول : ................................................................. 37**
**آتم – حضانه (د ماشوم روزنه او پالنه ): ............................................... 40**
د حضانت حق چا ته دی ؟..................................................................... 40
د حضانت شرطونه: ........................................................................... 41
اول د المحضون ( د پالونکي) شرطونه: ........................................................ 41
الحواضن ( د پالونکو ) شرطونه:............................................................... 41
اول عام شرطونه چې په سړي او ښځه پورې اړه لري ............................................ 41
دوهم د پالونکو ښځو شرطونه: ................................................................ 42
دریم هغه شرطونه چې سړي ته خاص شوي: ..................................................... 43
د پالونکي ښځې اجرت: ....................................................................... 43
د پالونکي ماشوم لیدنه کول: .................................................................. 44
د بچي د پالنې او روزنې موده: ................................................................ 44

## ځلورم فصل
## عقیدتي تربیه

**اول- د ماشومتوب په مرحله کې د عقیدې اهمیت ........................ 45**
**د اسلامي عقیدې بنستیز ارکان ............................................ 48**
**اول – د اسلام ارکان: ...................................................... 48**
د اسلام معنی : ............................................................ 48
د اسلام پنځه ارکان (بناوې) : ............................................... 48
د لا اله الا الله معنی او شرطونه:............................................ 49
د توحید د کلمې (لا اله الا الله ) شرطونه :.................................. 49
د «محمد رسول الله» معنی : ................................................. 50
**د ایمان تعریف : ........................................................... 51**
د ایمان ارکان : ............................................................ 51
اول – پر الله سبحانه وتعالی ایمان :......................................... 51
عقلي دلیل :................................................................. 53
دوهم – پر ملائکو ایمان :.................................................... 55
د جبرائیل علیه السلام وظیفه:............................................... 56
د مکائیل علیه السلام وظیفه :................................................ 56
د ملک الموت وظیفه: ...................................................... 56
د اسرافیل علیه السلام وظیفه :.............................................. 57

حفظه ملائکې: ........ 57
نکیر او منکر : ........ 57
دریم، د الله تعالی په کتابونو ایمان : ........ 57
څلورم، په رسولانو باندې ایمان : ........ 60
پنځم،د قیامت په ورځ ایمان : ........ 61
په تقدیر باندې ایمان لرلو مقصد : ........ 65
**اول- د ماشوم په زړه کې د الله تعالی د محبت ځایول : ........ 66**
**دوهم – حب رسول الله صلی الله علیه وسلم : ........ 69**
پر مونږ باندې د رسول الله صلی الله علیه وسلم حقوق: ........ 70
**دریم – د قرآنکریم محبت ........ 71**
**څلورم – د صحابه کرامو او صالح مؤمنانو سره مینه ........ 71**
اولادونو ته په صبر توصیه او هغوی ته د هدایت دعا : ........ 73
د شرک نه د نجات دعا : ........ 74

**پنځم فصل**

**عبادتي تربیه**

**د عبادت تعریف : ........ 76**
د عبادت د صحت شرطونه : ........ 76
**ماشومانو ته د لمانځه د تربیت مرحلې ........ 78**
لومړی مرحله : ........ 78

دوهمه مرحله :........................................................................ 78

دریمه مرحله : ....................................................................... 79

څلورمه مرحله :...................................................................... 80

د جماعت د لمانځه دیني او دنیوي فائدې...................................... 80

د رمضان روژه او ماشومان : ..................................................... 82

زکات ،صدقه او ماشوکان : ........................................................ 83

حج او ماشومان : .................................................................... 84

دعوت الی الله ،جهاد او ماشومان : ............................................ 85

## شپږم فصل

## اخلاقي تربیه

**د اخلاقو تعریف : ...................................................... 86**

د ښو اخلاقو فضائل : ................................................................ 87

د بد اخلاقی علاج څه دی ؟ ....................................................... 89

اخلاق د کومو صفاتو او آدابو مجموعه ده ؟ .................................. 89

۱- صدق او په وعده باندې وفاء کول :........................................... 90

۲- تواضع:............................................................................ 91

۳- صبر:.............................................................................. 92

۴- مهرباني او نرمي : ............................................................... 93

۵- عدل او مساوات : ........................................ 94
۶- حلم او حوصله او له غصې څخه پرهیز :........................ 95
حیاء : ........................................ 96
د راز ساتل :........................................ 97
اسلامي حجاب ........................................ 97
د بلوغ علایم په لاندې ډول دي........................................ 98
د بلوغ سن :........................................ 98
د پیغلې مسئولیت د خپل پلار په کور کې : ........................ 99
د اولادونو د نکاح انتظام :........................................ 101

## اووم فصل

### ادبي تربیه

**اسلامي آداب :........................................ 103**
اول- د والدین سره ادب او احترام :........................................ 103
دوهم- د ورونو او خویندو ادب او احترام : ........................ 105
د استاذ احترام:........................................ 105
دریم- د ګاونډې سره ادب او احترام ........................................ 107
څلورم-د اجازې غوښتلو آداب : ........................................ 108
پنځم- د خبرو او سلام اچولو آداب :........................................ 109

الف): د خبرو مسنونه آداب : ........................................ 109

ژباړه :........................................................................ 110

د خبرو کولو ځینې مسنونه آداب :...................................... 110

د سلام مسنونه آداب : ........................................................ 111

شپږم- د مجلس آداب ........................................................ 113

اوم- د خوړلو او څښلو آداب................................................ 114

د اوبو د څښلو آداب: ........................................................ 115

آتم- د خوب آداب ............................................................ 117

نهم- د تللو ،لارې او کیناستلو آداب : ................................. 120

د جومات آداب : ................................................................ 121

## آتم فصل

### علمي تربیه

**د علم او زده کړې اهمیت : ...................................... 129**

اولادونو ته د تعلیم ورکولو اجر او ثواب:.................................. 130

د زده کړې مراتب :............................................................ 131

د تعلیم په باره کې څو مهمې یادونې : ..................................... 133

## نهم فصل
## بدني تربیه

**د بدني روزنې فضیلت : ............................................... 134**
اولاد ته د نفقې برابرولو اجر :................................................. 135
نظافت................................................................... 136
لوبې او تمرینات.............................................................. 137

## لسم فصل

**د اولاد په تربیه کې ځینې غلط اسلوب او طریقې (مهم)............. 138**
اول – په تسلط کې له حده تیری : ................................................ 138
دوهم-ناحقه حمایت او ننګه.................................................. 139
دریم – غفلت ..................................................................... 139
څلورم – غیر عادلانه تشویق او ترغیب.......................................... 140
پنځم – د ماده پرستۍ عقیده :.................................................. 140
شپږم – د واحد هدف او تګلیارې نه اتنخاب :................................. 141
اوم- د اولادنو تر مینځ بې عدالتي : ............................................ 142
**د اولاد د تربیت په باره کې مهم وصیتونه:........................... 143**
**د اولاد تربیه د والدینو دیني مسئولیت دی.............................. 146**
**یوازې د ځان په اصلاح کې نجات نشته.................................... 153**
اول صفت:........................................................................... 155

## لومړی فصل

## په اسلام کې د اولاد روزنه

**د تربیه تعریف :**

تربیه په لغت کې روزنې ، ودې او ادب ورکولو ته وايي او په اصطلاح کې اولاد ته د اسلامي آساساتو او تعاليمو موافق داسې روزنه ورکول چې مرحله په مرحله په پوره ډول د روزنې ټول مراحل لکه : ديني ،فکري ، بدني ،نفسي ، روحي ، عقلي، او ټولنيز په پوره پاملرنه سره ور کړ شي .

**طفل :** طفل عربي لفظ دی چې په پښتو کې ماشوم بلل کيږي د طفولية او يا ماشومتوب دوره عبارت ده له :پيداښت څخه تر بلوغ پورې.

**د اولاد د روزنې او تربيت اهميت :**

اولاد يو ستر الهي نعمت دی : [وَجَعَلْتُ لَهُ مَالاً مَّمْدُودًا * وَبَنِينَ شُهُودًا ] (المدثر :12-13).

ژباړه: او (بيا مې) ده ته ډېر زيات مال ورکړ ،او زامن حاضر (باشه).

او اولاد د دنيا زينت دی: {الْمَالُ وَالْبَنُونَ زِينَةُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا}(الكهف).

ژباړه: مال او زامن د دنيايي ژوند زينت دی.

او په عين حال کې د اولاد اصلاح او تربيت يو مسئوليت دی ، الله سبحانه وتعالی فرمايي:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ] (التحريم:۶).

ژباړه: ای مؤمنانو ! خپل ځانونه او خپل اهل عیال له هغه اور څخه وساتئ چې خس يې خلک او تيږي دي .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْؤولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، الإِمَامُ رَاعٍ وَمَسْؤولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، وَالرَّجُلُ رَاعٍ فِي أَهْلِهِ وَهُوَ مَسْؤولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا وَمَسْؤولَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا....». (بخاری:853).

ژباړه:هر يو د تاسې راعي (شپون ) دی او هر يو د تاسې د خپل رعيت (لاس لاندې کسانو ) په برخه کې مسئول دي (د رعيت په اړه به له ده څخه پوښتنه کيږي ) . د ټولنې رهبر د خپل رعيت شپون او د خپل رعيت مسئول دی ، سړی د خپل کور د اهل مسئول دی ،ښځه د ميړه په کور کې د خپل اولاد شپنه او مسئوله ده .

**د اولاد د تربيت فضيلت :**

د اولاد سالمه اسلامي تربيه عظيم اهميت لري ځکه د اولاد تربيه د کورنۍ اصلاح ، د کلي ، کوڅې ، مکتب او ټولنې اصلاح ده چې ستر فضيلت لري د والدين او اولاد د پاره د دنيا او آخرت سعادت او کاميابي ده ، د اولاد د تربيت فضيلت په لاندې څو ټکو کې خلاصه کولای شو :

**۱- والدينو ته د اولاد په صالح علم کې اجر دی :**

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«مَنْ دَعَا إِلَى هُدًى كَانَ لَهُ مِنْ الْأَجْرِ مِثْلُ أُجُورِ مَنْ تَبِعَهُ لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْئًا»( مسلم ).

ژباړه : چا چې د نیکۍ طرف ته خلک دعوت کړل نو ده لره به د هغو ټولو خلقو هومره اجر او ثواب وي څوک چه د ده د دعوت سره یې نیک عمل شروع کړی وي .او ددې نیک عمل کونکو له عمله به هیڅ نه کمیږي.
او څوک چې د چا د ګمراهۍ او انحراف سبب شو نو د هغه په ګناه کې به هم ورسره شریک وي :
« مَنْ دَعَا إِلَى ضَلَالَةٍ كَانَ عَلَيْهِ مِنْ الْإِثْمِ مِثْلُ آثَامِ مَنْ تَبِعَهُ لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ آثَامِهِمْ شَيْئًا» (مسلم ).
ژباړه:چا چې خلک د یوی ګمراهۍ طرف ته دعوت کړل نو ددغې ګناه به هومره ګناه وي چې کوم ګناه کونکو دده د ګمراه کونکي عمل په وجه بې لاری شوي وي او د دغه خلکو په ګناه کې به هم کوم کمی نه راځی .

**۲- د مرګ څخه وروسته د صالح عمل دوام :**

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :إِذَا مَاتَ الْإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَنْهُ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثَةٍ :إِلَّا مِنْ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ، أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ، أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ ( المسلم ۱۶۳۱ ).
ژباړه : کله چې انسان مړ شي عمل یې قطع کیږي بغیر له دریو څیزونو : جاریه صدقه ، یا داسې علم چې له هغه څخه د خیر استفاده کیږي او یا صالح اولاد چه د مور او پلار د پاره دعا کوي.

**۳- د لوڼو د تربيت اجر:**

رسـول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْـهِ وَآلِـهِ وَسَـلَّمَ فرمايي: «مَنْ كانـت لـه ابنتـان فَأَحْسَـنَ إِلَيْهِما كُنَّ لَهُ سِتْرًا مِنْ النَّارِ» (ابن ماجه و ابن حبان ).

ژبـاړه:څوک چې دوې لورګانې ولـري او پـه ښـه او نيکـه توګـه لـه هغـوی سـره سلوک وکړي ، د ده لپاره د دوزخ د اور مانع وګرځي »

همداسې د خوينـدو سـره ښـه سـلوک کـول لـوی اجـر لـري :«من رُزق بنـاتٍ أو أخواتٍ فأحسن إليهِنَّ كُنَّ له ستراً من النار» (متفق عليه )

ژباړه : څوک چې په لوڼو يا خويندو خرڅ وکړي (سالمه روزنه او پالنه يې وکړي) او لـه هغـوی سـره نيـک چلـن وکـړي هغـه تـه بـه د دوزخ د اور څخـه د نجـات سبب شي.

**۴- په دنيا کې عزت او په نيک نوم يادول :**

لکه څنګه چې الله تعالی خپل نبي اسماعيل عليه السلام ستايلی دی چې هغه خپل اهل ته په لمانځه حکم کولو او د خپل اهل نيک تربيت يې کولو ، لقوله سبحانه وتعالی :[ وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُ بِالصَّلاَةِ وَالزَّكَاةِ وَكَانَ عِنْدَ رَبِّهِ مَرْضِيًّا](مريم :۵۵).

ژباړه: او ده به خپل اهل تـه پـه لمانځـه او زکات سـره حکم کاوه او دی د خپل رب په نيز پسنديده و.

او خپـل رښـتنې بنـده ګان يې سـتايلي دي چې هغـوی د خپـل ځـان پـه اصلاح اکتفـا نـه کـوي بلکي د خپـل اهـل عيـال اصلاح هـم لـه خپـل رب څخـه غـواړي،

قـال الله تعـالى: وَالَّـذِينَ يَقُولُـونَ رَبَّنَـا هَـبْ لَنَـا مِـنْ أَزْوَاجِنَـا وَذُرِّيَّاتِنَـا قُـرَّةَ أَعْـيُنٍ وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ( الفرقان: ۷۴).

ژباړه : او هغه کسان دي دعاوي کوي : ای زمونږ ربه ! مونږ ته له خپلو میرمنو او اولادونو څخه د سترګو یخیدل راکړه او مونږ د ځان ساتونکو امامان کړه .

**۵- د قیامت په ورځ عزت او شرف :**

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:«مَن قرأ القرآن وعمل به ألبس والداه تاجاً يوم القيامة ضوءه أحسن من ضوء الشّمس في بيوت الدنيا فمَا ظنُّكم بالّذي عمل بهذا» (رواه أبو داود والحاكم، وقال: صحيح الإسناد).

ژباړه: چا چې قرآن ولوستو او په قرآن يې عمل وکړ نو د قیامت په ورځ به د هغه د والدینو په سر باندې داسې تاج ور په سر کړ شي چې د هغې رڼا به د لمر د رڼا نه کوم چې د دنیا په کورونو کې وي ډیره ښایسته وي ددې نه وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: نو تاسې څه ګمان کوئ د هغه چا په باره کې چا چه خپله دا عمل کړی وي..

**۶- د اولاد د پاره تر ټولو غوره ډالۍ :**

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: «هیڅ یوه غوره ډالي د والدینو له طرفه خپلو ماشومانو ته تر ښه تربیه نشته» (رواه الطبراني).

# دوهم فصل

# لومړی مرحله

## د اولاد حقوق له پیداښت څخه مخکې

### اول – د صالحې ښځې او صالح خاوند انتخاب

کورنۍ عبارت ده له خاوند ، ښځې او اولاد څخه چې دا د ټولنې بنسټ جوړوي او د کورنۍ جوړښت د نکاح او واده پرته امکان نلري ، پس د نکاح شرعي حکم د انساني فطرت غوښتنه، د ټولنې بنسټ د نسل بقاء بلل کیږي چې دا په صالح ازدواج سره پیل کیږي (تربیه طفل في الأسلام / سیما ص ۲۰ ، تربیة الطفل في الأسلام /دوکتور ابراهیم ص ۱۵) .

**د صالح اولاد بنسټ د صالحې ښځې انتخاب دی :**

رسول الله صلى الله علیه وسلم فرمایي: «تنكح المرأة لأربع: لمالها، ولحسبها، ولجملها، ولدينها، فاظفر بذات الدين تربت يداك» (متفق علیه).

ژباړه: ښځه د څلورو شیانو په نظر کې نیولو سره انتخاب کړئ: مال او دارايي، اصل او نسب، ښایست او دینداري، پس دینداره ښځه انتخاب کړه، لاس دې په خاورو سپره شه (ابي هریره)

په پورته حدیث شریف کې په ذات الدین صفت باندې تأکید شوی ځکه که ښځه دینداره وي نو دینداري د ټولو صفاتو بنسټ او اساس بلل کیږي، هغه صفات چې په دینداره ښځه کې شامل وي ځینې یې په لاندې ډول دي:

**۱- سالمه عقیده**

سالمه عقیده چې د اهل سنت و الجماعت موافق وي د ټولو ښو اعمالو بنسټ بلل کیږي او که د اهل بدعت او اهل ضلالت ښځه وي نو هغه ذوات الدین یا دینداره نه بلل کیږي.

**۲- د میړه اطاعت:**

دینداره ښځه د خپل میړه اطاعت کوي ځکه چې هغه د الله (جل جلا له) او رسول الله صلی الله علیه وسلم د امر فرمانبرداره وي الله (جل جلا له) او رسول الله صلی الله علیه وسلم هغې ته د خپل خاوند د اطاعت کولو حکم کړی دی.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «قِيلَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ النِّسَاءِ خَيْرٌ؟ قَالَ: الَّتِي تَسُرُّهُ إِذَا نَظَرَ، وَتُطِيعُهُ إِذَا أَمَرَ، وَلَا تُخَالِفُهُ فِي نَفْسِهَا وَمَالِهَا بِمَا يَكْرَهُ» (رواه النسائي ۳۱۳۱).

ژباړه: ابی هریرة رضی الله عنه وایي: چا د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وکړه چې کومه ښه ښځه ده؟ وېې فرمایل:هغه چې کله ور ته وګورې خوشحاله شي، چې کله د څه امر ور ته وکړې اطاعت کوي، او د ځان او مال په حصه کې کوم چې ته یې نه خوښوې مخالفت نه کوي (ستا په غیابت کې د خپل نفس او مال حفاظت کوي).

بل حدیث شریف کې راغلی:«الدنیا کلها متاع، وخیر متاع الدنیا المرأة الصالحة» (رواه مسلم ۱۴۶۸).

ژباړه: دنيا ټوله (متاع) ده، د دنيا غوره متاع صالحه او دينداره ښځه ده.

**۳- د خير په کار کې د مېړه مدد کول**

دينداره ښځه د خپل خاوند د دين او ايمان مددګاره وي هغه ته په طاعت امر کوي او له بې دينۍ او ناروا کارونو څخه يې منع کوي.

په حديث شريف کې راغلي رسول الله صلی الله عليه وسلم عمرفاروق رضی الله عنه ته و فرمايل:ايا تا د غوره مال او کنز څخه خبر نه کړم چې يو څوک يې زخيره کوي؟ هغه غوره مال او دولت عبارت له: شاکره زړه، ذاکره ژبه او مسلمانه ښځه (رواه الترمذي ۳۰۹۴).

**۴- دينداره ښځه نيکوکاره او صالحه وي:**

دينداره بی بی د خپل رب فرمانبرداره وي او کله چې مېړه مسافر وي هغه د خپل کور او آبرو حفاظت کوي او تر ټولو مهمه دا چې خپل اولاد ته اسلامې روزنه ورکوي.

لقوله تعالی: [فَالصَّالِحَاتُ: قَانِتَاتٌ حَافِظَاتٌ لِلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللَّهُ] (النساء/ ۳۴)

ژباړه: نو نيکې ښځې امر منونکې دي او د (مېړو) په غياب کې (د هغوی د شان او مال) ساتنه کوي له همدې امله الله پاک د هغوی (د حقونو پر مېړونو باندې) ساتنه کړې ده.

وعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِی وَقَّاصٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلی الله عليه وسلم: «أَرْبَعٌ مِنَ اَلسعَادَةِ: الْمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ، وَالْمَسْكَنُ ألوَاسِعُ، وَاَلجَارُ الصَّالِحُ، وَالْمَرْكَبُ

اَلْهَنِيءُ، وَأَرْبَع مِنَ اَلشَّقَاوَةِ: اَلْجَارُ السُّوءُ، والمرأة اَلسُّوءُ، وَالْمَسْكَنُ اَلضيقُ، وَالْمَرْكَبُ السُّوءُ».

ژباړه: سعيد بن ابی وقاص وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: څلور د سعادت او نيکبختۍ څيزونه دي: صالحه او دينداره ښځه، پراخه استوګنځی، صالح ګاوندی،راحت او آسوده سورلی، او څلور د بدبختۍ څيزونه دي: بد ګاوندی، بده ښځه، تنګ کور، بده سورلی.

**۵- دينداري د جنت د دخول وسيله ده**

دينداره ښځه د خپل رب (جل جلاله) او په نيک کار کې د خپل خاوند اطاعت کوونکې وي چې داسې ښځه به په ډير اکرام او عزت سره جنت داخليږي هغې ته به ويل کيږي له کومې دروازې چې غواړې جنت ته داخله شه.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: «إِذَا صَلَّتْ الْمَرْأَةُ خَمْسَهَا وَصَامَتْ شَهْرَهَا وَحَفِظَتْ فَرْجَهَا وَأَطَاعَتْ زَوْجَهَا قِيلَ لَهَا ادْخُلِي الْجَنَّةَ مِنْ أَيِّ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ شِئْتِ» (رواه أحمد ۱۶۶۴)

يعني: کله چې کومه ښځه پنځه وخته لمونځ وکړي، د رمضان روژه ونيسي، د آبرو حفاظت وکړي او د ميړه اطاعت وکړي، هغې ته ويل کيږي له کومې دروازې چې غواړي جنت ته ننوځه.

نو څرګنده شوه چې د ښځې دينداري زيات اهميت لري دينداره ښځه د دنيا او آخرت د نيکبختۍ سبب ګرځي.

**د صالح اولاد بنسټ د صالح خاوند انتخاب دی:**

والدین د خپل اولاد لپاره نمونه او مثال وي چې اولاد د هغوی د هرې وینا او کړنې څخه تقلید کوي .

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : (إذا أتاكم من ترضون خلقه ودينه فزوجوه) إن لا تفعلوا تكن فتنة في الأرض وفساد عريض) الترمذي .

يعنې : کله چې راشي تاته د خواستګارۍ د پاره داسې څوک چې دین او اخلاق يې د رضایت وړ وي نو هغه ته يې په نکاح ورکړئ ، او که داسې ونه کړئ نو فتنه او فساد به په ځمکه کې زيات شي .

د اولاد د اسلامي روزنې مسئولیت پلار او بيا مور ته متوجه دی ، کله چې پلار او مور صالح او متقیان وي پر اولاد يې اثر پرېوځي او متقیان والدین د خپلو اولادونو روزنه د الله تعالی د جانبه فرض ګڼي او په هغه کې غفلت نه کوي

## دریم فصل

## دوهمه مرحله

## د مور په نس کې د اولاد حقوق

**د جنین حقوق:**

جنین د مور په ګېډه کې بچي او یا د مور په رحم کې حمل ته وايي چې شرعاً خاوند او ښځې دواړو ته دا مسئولیت متوجه دی چې د هغه ساتنه وکړي او هغه ته د ضرر رسیدو مخنوی وکړي ، ښځه په رحم کې د بچې په

ساتنه امينه ده ، الله سبحانه وتعالى فرمايي ::[وَلاَ يَحِلُّ لَهُنَّ أَن يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ إِن كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ] (البقره: 228).

ژباړه: او ورته حلال نه دي چې هغه څه پټ کړي چې الله (جل جلا له) د دوی په رحمونو کې پیدا کړي دي کچېرې دوی پر الله (جل جلا له) او ورځ د آخرت ایمان لري.

اسلام ښځې ته د حمل په دوره کې د روژې خوړل مباح کړي په هغه صورت کې چې بچي ته ضرر رسيږي ، ددې څخه ښه څرګندیږي چې والدین د جنین په ساتنه او حفاظت مکلف دي .

او خاند او ښځې ته په هيڅ صورت کې جایز نه دي چې حمل له مینځه یوسي هغه که په بې علمۍ ، بې احتیاطۍ له وجې وي یا د مضرو درملو خوړلو له لارې او یا په بله طریقه وي داسې کول حرام او عظیمه ګناه ده .

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ قَتَلُواْ أَوْلاَدَهُمْ سَفَهًا بِغَيْرِ عِلْمٍ] (الانعام ۱۴۰).

ژباړه: یقیناً هغه کسان زیانمن شول چې په ناپوهۍ سره یې خپل اولادونه د جهالت له کبله ووژل.

او فرمايي: [وَلاَ تَقْتُلُواْ أَوْلادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلاقٍ نَّحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُم إنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْءًا كَبِيرًا] (بني اسرائيل ۳۱).

ژباړه: او د فقر له ویرې خپل اولادونه مه وژنئ، مونږ دوی او تاسې ته روزي در کوو، په رښتیا چې د دوی وژل ستره ګناه ده.

کچیرې مور یا بل څوک د جنین د قتل سبب شول په هغوی باندې غرة ( د دیت لسمه برخه ) واجبیږي .

# څلورم فصل

## دریمه مرحله

## د اولاد حقوق د پیدائښت څخه وروسته

### اول – د پیدائښت زیری او مبارکي:

د هلک یا نجلی د پیدا ښت زیری او مبارکي ورکول مستحب دي ، ځکه چې په دې سره د مسلمانانو تر مینځ محبت او وروروليي ټینګیږي .

جناب رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي : «مثَلُ الْمُؤْمِنِينَ فِي تَوَادِّهِمْ وتَرَاحُمِهِمْ وتَعاطُفِهِم، مَثَلُ الْجَسَدِ إِذَا اشْتَكَى مِنْهُ عُضْوٌ تَداعَى لَهُ سائِرُ الْجسدِ بالسهَرِ والْحُمَّى». (متفق علیه ).

ژباړه:پخپل مینځ کې د مسلمانانو د محبت همدردئ او مهربانی مثال په شان د بدن دی . که د بدن یو اندام په تکلیف وي نو ټول بدن به په تکلیف درد او تبه کې ورسره شریک وي .

زیرې او بشارت ښه خبر ورکولو ته وایي او مبارکې د خیر دعا کولو ته وایي .

د اولاد د پیدائښت د زیرې په باره کې په قرانکریم کې څو آیتونه راغلي دي ، الله سبحانه وتعالی فرمایلي :

[فَنَادَتْهُ الْمَلَآئِكَةُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي فِي الْمِحْرَابِ أَنَّ اللّهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيَى] (آل عمران :٣٩ ).

ژباړه : ور ناري کړي ده ته (زکريا ته ) پرښتو حال دا چې دی ولاړ ؤ لمونځ يې کاوه په محراب کې چې يقيناً الله تعالى زيرى کوي په تا د يحيى .

همداسې د الله تعالى د جانبه بنده ته د نعمت حاصلېدو مبارکي ورکول مستحب دي او اولاد د الله تعالى لوی نعمت دی ، کله چې د جليل القدر صحابي کعب بن مالك رضى الله عنه توبه الله تعالى قبوله کړه صحابه کرامو زيرى ورکړ او هغه ته يې مبارکې وويله .

او کله چې نوی ماشوم يا ماشومه پيدا شي هغه به ولمبوي خپله يا کوم صالح کس ته به يې ور ولي «حنکه» به يې وکړي او د برکت دعا به ورته وکړي .

عَنْ أَبِي مُوسَى ﷺ قَالَ: وُلِدَ لِي غُلَامٌ فَأَتَيْتُ بِهِ النَّبِيَّ ﷺ فَسَمَّاهُ إِبْرَاهِيمَ، فَحَنَّكَهُ بِتَمْرَةٍ، وَدَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ، وَدَفَعَهُ إِلَيَّ. (بخارى:٥٤٦٧)

ژباړه: ابى موسى رضى الله عنه وايي : زما ماشوم پيدا شو ، هغه مې د نبى صلى الله عليه وسلم حضور ته ور وړلو ، آنحضرت صلى الله عليه وسلم په هغه ابراهيم نوم کېښود ، بيا يې خرما وژوله او په خوله يې ورکړه او د برکت دعا يې ورته وکړه او بيا ماته راکړ .

**دوهم – په غوږ کې اذان :**

کله چې ماشوم پيدا شي د هغه په ښي غوږ کې آذان او ګين غوږ کې اقامت ويل مستحب دي ، اذان او اقامت ويل به په متوسط آواز وي داسې چې ماشوم يې واروي .

عبيد الله بن أبى رافع له خپل پلار څخه روايت کوي چې :« رأيت رسول اللّه صلى اللّه عليه وسلم أذن في أذن الحسن بن عليّ حين ولدته فاطمة » (ابوداود ).

ژباړه : ما وليد رسول الله صلى الله عليه وسلم چې د حسين بن علي رضی الله عنهما په غوږ يې آذان وکړ لکه چې بی بی فاطمه رضی الله عنها زږولی وو .

**په غوږ کې د آذان کولو حکمت :**

الف ): دا چې لومړی انسان ته د خپل رب (جل جلاله) د توحيد آواز ورسي ، په توحيد باندې شهادت د اسلام هغه شعار دی چې څوک نوی دنيا ته راځي او يا کله اسلام ته داخليږي نو هغه ته د توحيد داسې تلقين ورکول لکه څنګه چې د ځانکندن په وخت کې د توحيد د کلمې تلقين ورکول کيږي .

ب ) : شيطان د آذان څخه تښتي ، شيطان د انسان هغه دوښمن دی چې د پيداښت سره سم په کمين کې ناست وي او غواړي چې د بنده تعلق د خپل خالق څخه قطع کړي .

رسـول صـلى الله عليـه وسـلم فرمـايلي دي :« أن الشـيطان يفـر عنـدما يسـمع صوت الاذان»

ژباړه: شيطان چې کله د آذان غږ واوري نو تښتي.

ج ): د اسلام طرف تـه دعـوت او همدارنګـه د سـتر عبـادت طـرف تـه دعـوت کول چې هغه لمونځ دی، لکه څنګه چې هر مولود الله تعالی د اسلام په فطرت سره پيدا کوي ، خو شيطان هغه د ګمراهې طرف ته دعوتوي لکه مخکې مو چې اشاره ورته وکړ .

**دريم – د سر د ويښتانو خريل**

مستحب ده چې په اومه ورځ د پيدا شوي ماشوم د سر ويښتان وخريل شي او د هغه د وزن موافق سپين زر يا د هغه قيمت صدقه کړ شي .

حضـرت علی رضـی الله عنـه روايـت کـوي چې : رسـول صـلی الله عليـه وسـلم فـاطمه رضی الله عنها ته وويل :« يا فـاطمه ،احلقي رأسـه وتصـدقي بزنـه شـعره فضه» (الترمذی :١٥١٩ ).

ژباړه : ای فـاطمې ! سر يې وخريه او د ويښتـانو په وزن يې سپين زر صدقه کړه .

همدارنګـه ابـو رافـع روايـت کـوي چې کلـه حسـن رضـی الله عنـه دنيـا تـه راغی جنـاب رسـول الله صـلی الله عليـه وسـلم بې بې فـاطمې رضـی الله عنهـا تـه و فـرمايل : (احلقي رأسـه، و تصـدقي بـوزن شـعره فضـة علي المسـاكين) « د سـر

ویښتان یې وخریه او د هغه په وزن سپین زر مساکینو ته صدقه کړه ».
(الإرواء 1175).

د سر ویښتانو د خریلو حکمت د نعمت شکرانه ده ، او په صحي لحاظ د سر د خریلو په وسلیه د هغه د سر سورې خلاصیږي او په دې سره یې ویښتان ، سترګې او غوږونه قوي کیږي .

**څلورم ، عقیقه:**

**تعریف:** عقیقه د ماشوم او ماشومې د زږېدنې په نعمت باندې الله تعالی ته د شکر ادا کولو په نیت په خاصو شرعي شرائطو د حیوان ذبحې ته عقیقه وایي .

**د عقیقه حکم:**

جناب نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي : « کل غلام رهینة بعقیقته تُذبح عنه یوم سابعه ....» ( رواه الترمذي :۱۵۲۲، وأبو داوود :۳۸۳۸) .

ژباړه: هر نوی زږیدلی د هغه د عقیقې په خاطر ګرو دی ، چې باید په اومه ورځ د هغه د عقیقې ذبح وشي .

عقیقه د احنافو په نزد مستحب ده (مختصر الطحاوي ص ۲۹۹، العقود الدرية في تنقيح الفتاوى الحامدية ۲/ ۲۱۲).

و يستحب لمن ولد له ولدان يسمه يوم اسبوعة و يحلق راسه و يتصدق عند الائمة الثلاثة ، و عقيقة اباحة على ما فی جامع المحبوبی و تطوعاً ما فی شرح

الطحاوية و سنتها الشافعی و احمد سنة مؤكدة )ردالمختار ، كتاب الاضحية ۳۳۶/۶ ).

د امام احمد او امام شافعی په نزد سنت مؤلد ده (الموسوعة الفقهية ۲۷۶/۳۰).

**د عقيقې وخت :**

مستحب دا ده چې په اومه ورځ د ماشوم عقيقه ، د سر د ويښتانو يې وخريل شي او همدارنګه د هغه د پاره نوم وټاکل شی.

جناب نبی کريم صلی الله عليه وسلم فرمايي " :كل غلام رهينة بعقيقته تُذبح عنه يوم سابعه ، ويُسمى فيه ويُحلق رأسه » (رواه الترمذي وأبو داوود ).

د دريو امامانو په نزد مستحب دا ده چې په اومه ورځ د ماشوم عقيقه ، نوم ټاکل او د سر د ويښانو خريل تر سره شي (كفايت المفتي ج ۸ ص ۲۴۹ – درالمحتار كتاب الاضحية ۶ / ۳۳۶ ).

**د عقيقې شروط :**

د عقيقې د ذبحې د څاروي لپاره هغه شرايط دي کوم چې د قربانۍ لپاره دي.

عقيقيه د غواېي ، اوښ ، پسه ، څرلي صحيح کيږي ، د چرګ ، مرغه او نورو نه صحيح کيږي.

يُجْزِئُ فِي الْعَقِيقَةِ الْجِنْسُ الَّذِي يُجْزِئُ فِي الأُضْحِيَّةِ ، وَهُوَ الأَنْعَامُ مِنْ إِبِلٍ وَبَقَرٍ وَغَنَمٍ ، وَلا يُجْزِئُ غَيْرُهَا ، وَهَذَا مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ بَيْنَ الْحَنَفِيَّةِ ، وَالشَّافِعِيَّةِ وَالْحَنَابِلَةِ ، وَهُوَ أَرْجَحُ الْقَوْلَيْنِ عِنْدَ الْمَالِكِيَّةِ (موسوعة الفقهية ).

غوره دا ده چې د هلک لپاره دوه پسونه یا دوه څیرلي او د نجلۍ لپاره یو پسه او یا یو څېرلي ذبحه شي.
په دلیل د دغه حدیث» : عن الغلام شاتان وعن الجاریة شاة».
او د هلک او نجلۍ دواړو لپاره یو یو پسه او یا څرلی ذبح کول هم جایز دي.
په دلیل د دغه حدیث» : عق عن الحسن والحسین علیهما السلام کبشاً کبشاً) «رواه أبو داود، والنسائي).
د (شاة) اطلاق په دواړو پسه او څرلي باندې دی..

**د عقیقې د غوښې حکم :**

د جمهورو فقهاؤ په نزد د عقیقې د غوښي پخول مستحب دي.
د عقیقې د خوښې خپله خوړل ، صدقه کول ، خپلوانو ته دوډۍ ورکول جایز دي.
ذَهَبَ جُمْهُورُ الْفُقَهَاءِ إِلَى أَنَّهُ يُسْتَحَبّ طَبْخُ الْعَقِيقَةِ كُلِّهَا حَتَّى مَا يُتَصَدَّقَ بِهِ مِنْهَا لِحَدِيثِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا : " السُّنَّةُ شَاتَانِ مُكَافِئَتَانِ عَنِ الْغُلامِ وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةٌ ، تُطْبَخُ جُدُولا وَلا يَكْسِرُ عَظْمًا ، وَيَأْكُلُ وَيُطْعِمُ وَيَتَصَدَّقُ وَذَلِكَ يَوْمَ السَّابِعِ ( موسوعة الفقهية ٣٠/٢٧٦ ).

**د عقیقې ځینې فوائد :**

١- د الله تعالی اطاعت او د نوي مولود لپاره د خیر او برکت جلبول او د نبوي صلی الله علیه وسلم د سنتو را ژوندي کول .
٢- د عقیقې د ولیمې د دعوت له لارې د ماشوم د پیدابښت د خبر خپرېدل .

۳- سخاوت او د بخل څخه پرهيز .

۴- د عقيقې خوراک ته د خپلوانو او ګاونډيانو دعوت او په دې سره د خپلوی زياتېدل .

۵- ماشوم په عقيقې سره ګروه وي او د عقيقې په ادا کولو سره خلاصيږي چې د ګروی څخه مطلب د والدينو شفاعت کول دي .

(تربيه الطفل في الاسلام / سيما راتب ص ۱۳ ، تحفة المودود بأحكام المولود/ ابن قيم ص ۵۹ ).

**پنځم – د نوم ايښودل :**

مستحب ده چې په اوومه ورځ ماشوم يا ماشومې ته نوم وټاکل شي .

جناب نبی کريم صلی الله عليه وسلم فرمايي : « کل غلام رهينة بعقيقته تُذبح عنه يوم سابعه ، ويُسمى فيه ويُحلق رأسه» ( رواه الترمذي :۱۵۲۲، وأبو داوود :۳۸۳۸) .

ژباړه: هر نوی زېږيدلی د هغه د عقيقې په خاطر ګرو دی ، چې بايد په اوومه ورځ د هغه د عقيقې ذبح ، د سر د ويښتانو خريل او په هغه باندې نوم ايښودل تر سره شي .

د دريو امامانو په نزد مستحب دا ده چې په اومه ورځ د ماشوم عقيقه ، نوم ټاکل او د سر د ويښانو خريل تر سره شي (کفايت المفتي ج ۸ ص ۲۴۹ – درالمحتار کتاب الاضحية ۶ / ۳۳۶ ) .

لجنة الدائمة ليکی : که عقيقه ، او حلق په اومه ورځ تر سره نشي باک نه لري همدارنګه که عقيقه په يوه ورځ او د سر خريل په بله ورځ تر سره شي باک نه لري (لجنة الدايمة ۱۱/۴۴۳ – هيئت کبار علماء عربستان ) .
د عقيقي د ذبحې وروسته به نوم کيږدي او کچيرې د فقر له وجې عقيقه پاتې شي کله يې چې خوښه شوه نوم دې ورته وټاکي .
وَإِذَا ذَبَحَ الْعَقِيقَةَ أَوْقَعَ عَلَيْهِ الاسْمَ ،وَإِنْ كَانَ الْمَوْلُودُ لا يُعَقُّ عَنْهُ لِفَقْرِ وَلِيِّهِ فَيُسَمُّونَهُ مَتَى شَاءُوا . انْتَهَى (تحفة المودود بأحكام المولود ص ۸۸) .

**څه ډول نوم ايښودل په کار دي ؟**

نومونه په څو برخو ويشل شوی دي غوره نمونه مباح او جايز ، حرام او مکروه:

**غوره نومونه :**

هغه نومونه دي چې په هغه کې د بندګۍ صفت موجو وي لکه عبدالله ، عبدارحمن ، عبدالخالق او نور ..
رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : «إن أحب أسمائكم إلي الله: عبدالله و عبدالرحمن».
يعني: الله ته خوښ نومونه عبدالله ، عبدالرحمن دي.( مسلم ۲۱۳۲) .
همدارنګه د پيغمبرانو نومونه ايښودل ځکه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم پخپل زوی باندې ابراهيم نوم ايښی وو .

او همدارنګه د صحابه کرامو رضی الله عنهم نومونه ایښودل چې کولای شو دلته د زبیر بن عوام رضی الله عنه نوم د نمونې د پاره یاد کړو چې د بدر د نهو تنو شهیدانو پخپلو زامنو باندې د زبیر نوم ایښی وو .

مباح نومونه : هغه نومونه دي چې په اړه یې شرعي ممانعت نه وي راغلی .

**حرام او مکروه نومونه :**

حرام او مکروه نومونه په لاندې ډول دي :

الف ) حرام نومونه: ټول هغه نومونه دي چې الله (جل جلا له) ته خاص وي لکه : خالق ، ملک الملوک او داسې نور چې دا خاص د الله (جل جلا له) صفات دی او په دې قول د ټولو فقهاؤ اتفاق دی .

لکه ابن قیم رحمه الله چې وایي: هغه اسماء چې الله (جل جلا له) ته خاص دي لکه : الله ، رحمن ، حکم ، احد ، صمد ، خالق ، رازق ، جبار ، اول ، آخر ، باطن ، علام الغیوب او نور.... (تحفة المودود ص ۹۸ ) .

هغه اسماء چې الله (جل جلا له) ته خاص دي د حرمت دلیل د بخاري شریف دا حدیث دی : عن أبي هريرة رضي الله عنه قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " أخنى الأسماء يوم القيامة عند الله رجل تسمى ملك الملوك (البخاري).

ژباړه : ابي هريره رضی الله عنه وایي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : د قیامت په ورځ الله جل جلا له ته بدترین نوم د هغه چا دی چې په ځان یې د پاچانو پاچا یا شاهینشاه نوم ایښودلی وي .

او هغه نومونه چې د الله (جل جلا له) او نورو تر مینځ مشترک وي جایز دي لکه علی ، لطیف او بدیع .

**ب ) : شرکي نومونه :** هغه نومونه دي چې په غیرالله باندې دلالت کوي لکه : عبدالعزی ، عبد الکعبه ، عبدالدار ، عبد علی ، عبد الحسین ، عبد المسیح ، عبد الرسول .... او نور

وتحرم التسمية بكل اسم معبد مضاف إلى غير الله سبحانه وتعالى كعبد العزى ، وعبد الكعبة ، وعبد الدار ، وعبد علي ، وعبد الحسين ، وعبد المسيح أو عبد فلان ... إلخ (حاشية ابن عابدين ٢٦٨/٥ ، ومغني ٢٩٥/٤) .

والدليل على تحريم التسمية بكل معبّد مضاف إلى غير الله سبحانه وتعالى ما رواه ابن أبي شيبة عن يزيد بن المقدام بن شريح عن أبيه عن جده هانئ بن يزيد رضي الله عنه قال : " وفد على النبي صلى الله عليه وسلم قوم ، فسمعهم يسمون : عبد الحجر ، فقال له : ما اسمك ؟ فقال : عبد الحجر ، فقال له رسول الله صلى الله عليه وسلم : إنما أنت عبد الله (من الموسوعة الفقهية ٣٣٥/١١).

**مکروه نومونه :**

١- د کافرانو او فاسیقانو نومونه ایښودل مکروه دي .

زمونږ په زمانه کې د مسلمانانو په مینځ کې اوس دا رواج شروع شوی چې د کافرانو ، د فاحشو فلمونو او موسیقی واله نمونه ږدي که دا کار د تقلید او مشابهت په خاطر وي نو کبیره ګناه ده او که د هغوی د اعتقاداتو د خوښی

او د هغوی سره د مينې او دوستۍ د اظهار په خاطر وي نو دا بيا د ايمان د پاره لوی خطر دی .

۲- د سندرغاړو ، فلم جوړونو او ټولو هغو کسانو چې لهو لعبو ته خلک بولي ، نومونه ايښودل مکروه دي .

۳- شهوت پارونکي نومونه ايښودل مکروه دي لکه په نجونو باندې د (کفاتن ) ، ( مغناج ) يعنې جذابه او مينه ناکه يا مينه ، ښايسته نومونه ايښودل .

۴- : داسې نوم ايښودل مکروه دي چې په ګناه او معصيت باندې دلالت کوي .

۵- د فرعونيانو او جابرينو نومونه ايښودل مکروه دي

۶- د حيوانانو نومونه ايښودل مکروه دي لکه : حمار ، کلب يعنې خر ، سپی او نور .

۷- داسې نومونه ايښودل مکروه دي چې هغه د (الدين ) يا (الأسلام ) سره يو ځای شوی وي لکه : نورالدين ، شمس الاسلام ، سيف الاسلام ، ناصر الدين او نور ځکه چې که نومړی کس ددې نامه خلاف وي نو بيا دا د اسلام اهل ته وبال ګرځي او بل په پاکۍ او صفت کې مبالغه ده .

مثلاً يو کس د دين دوښمن وي خو د ده نوم ناصر الدين وي ، يو کس ستر فاسق وي خو دده نوم سيف الاسلام وي نو دا يوه دواغجنه دعوه او دروغ شول چې د داسې نومونه په اړه د ځنې فقهاؤ نظر تحريم او د ځنو کراهيت دی.

۸- د شیطانانو نومونه ایښودل حرام دي لکه : ابلیس ، خنزب .... او همدارنګه د بوتانو نمونه ایښودل حرام دي لکه څنګه چې په سنتو کې ددې نومونو د تغیر روایات ثابت شوی دي .

۹- او ځنو علماء د ملائکو نومونه ایښودل مکروه بولي په خاص توګه د ښځو د پاره د ملائکو نومونه غوره کول (وكره جماعة من العلماء التسمي بأسماء الملائكة عليهم السلام . أما تسمية النساء بأسماء الملائكة ، فظاهره الحرمة ، لأن فيها مضاهاة للمشركين في جعلهم الملائكة بنات الله ، تعالى الله عن قولهم )(تحفة المولود).

۱۰- ځینې علماء د قرآنکریم د سورتونو نمونه ایښودل مکروه بولي لکه : طه ، یس ، حم مګر د ځنو علماؤ نظر بیا دا دی چې باک نه لري لکه : طه ، یاسین او نور د دوی دلیل دا دی چې په دې اړه د منع کوم شرعي دلیل وجود نه لري .

۱۱- داسې نومونه ایښودل چې په هغه کې د پاکئ او صفت مبالغه وي ، عابد ، متقي ، پاکیزه او نور (الأسماء التي تحمل تزكية مثل : بّرة وتقي وعابد ... ينظر تحفة المودود لابن القيم وتسمية المولود) .

**عين الله ، وجهه الله او يدالله نومونه :**

دا نومنونه (وجه الله ، يدالله ، عين الله ( ایښودل جواز نلري ځکه دا د الله سبحانه وتعالی بلا کیف او بلا تشبه ذاتي صفات دي چې د مخلوق لپاره دا ډول نومونه ایښودل جواز نلري.

جاء في فتاوي اللجنة الدائمة:

وبعد دراسة اللجنة للاستفتاء، أجابت بأنه لا يجوز تسمية المولود بـ: (روح الله، ولا عين الله) ؛ لأنها من صفات الله الذاتية، وصفات الله الذاتية ).

والله اعلم .

**شپږم – د ماشوم سنت کول**

د ماشوم سنت کول د فطري سنتو څخه دی ، د اسلام شعار دی .

رسول صلى الله عليه وسلم فرمايلي :« الفطرة خمس: الختان، والاستحداد، وقص الشارب، وتقليم الأظفار، ونتف الآباط» ( متفق عليه ).

ژباړه: دا پنځه شيان د انسان د فطرت سليمه د تقاضا خاص احکام دي:

ختنه سنت کول ، د نامه لاندې ويښتو خريل ،د بريتو لنډول ، نوکونه پرې کول ، د تخرګونو د ويښتانو اخستل.

د سنت کولو د وخت په اړه د فقهاء کرامو څو قولونه دي :

لومړی قول : د کوچنيتوب څخه د تميز تر سن پورې .

دوهم قول : د اووه کلنۍ نه تر لس کلنۍ پورې .

دريم قول: د هغه سن څخه چې ماشوم يې طاقت ولري تر لس کلنۍ پورې ځکه په لس کلنۍ کې د لمانځه امر شوی دی .(الموسوعة الفقهية ٢٩/١٩ ).

خو د ځينو علماؤ رايه دا ده چې د اوو کلونو د عمر په د ننه کې غوره او اولی دی .

ځکه د ماشوم والدینو ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم دا دی چې په اوه کلنې کې مو اولاد ته د لمانځه کولو حکم وکړئ ، ختنه یا سنت کول له طهارت سره تړلي دي .

**د سنت کولو حکمت:**

**الف): دیني حکمت :**

۱- د حنفي دین فطرت او د اسلام شعار .

۲- مسلمان له غیر مسلمان څخه جلا کیږي .

۳- د الله تعالی په بنده گۍ باندې اقرار .

**ب) : صحي حکمت :**

د ماشوم د ختنې په وسیله د نظافت مراعات او د ډیرو امراضو مخنوی کیږي

دوکتور صبري پخپل کتاب «حیاتنا الجنسیة» کې د ختنه اطفال ځینې صحي گټې په لاندې ډول بیان کړې دي :

۱- د شحمي افرازاتو څخه خلاصون کوم چې د وینې د میکروبي کېدو او په سوزاک باندې د اخته کیدو سبب گرځي .

۲- د شرمگاه د پراختیا پر مهال حفشه له خطر نه ساتل .

۳- ختنه شوي کسان په سرطان باندې لږ اخته کیږي .

۴- طفل د شپې له میتیازو کولو منع کیږي .

۵- د (Phimosis) د درد څخه مخنوی کوم چې د شرمګاه د نل د تنګوالی څخه پیدا کیږي .

(تربیه الطفل في الاسلام / سیما راتب ص ۳۳ ،تربیة الأولاد في الإسلام /عبدالله ناصح ۱/۱۱۶) .

**اوم – د شېدو ورکول :**

په مور باندې دیانتاً واجب ده چې خپل بچي ته تر دوو کالو پورې د خپلې سینې شېدې ورکړي .

الله جل جلا له فرمايي : [وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلاَدَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ أَرَادَ أَن يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ وَعلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ] (البقرة:۲۳۳).

ژباړه: او د کوم پلار چې دا هیله وي چې اولاد يې د تي رودنې په ټوله موده کې تی وروي نو میندې دې خپلو بچیانو ته پوره دوه کاله تی ورکړي ، په دې صورت کې به د ماشوم پلار په ښه شان هغوی (مور او ماشوم ) ته خواړه او جامې ورکوي.

**هغه صورتونه چې پی ورکول واجب نه دي :**

۱ -که سړی مالدار وي او هغه خپل بچی د اجرت په بدل کې بلې ښځې ته د تي ورکولو لپاره ور کولای شي ، په شرط ددې چې ماشوم د بلې ښځې تی وروي کچېرې ماشوم د مور څخه پرته د بل چا تی نه روي نو پر مور باندې يې د تي ورکول واجب دي .

۲ -که مور مریضه وي یا ډیره کمزورې وي چې که ماشوم ته پی ورکړي هغې

ته نقصان رسيږي نو په دې صورت کې ښځه د تي ورکولو مسئوليت نه لري او پلار هغه د تي په ورکولو نه شي مجبورولای ، لقوله سبحانه وتعالی :«لاَ تُضَآرَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا ...الايه»

يعنې : نـه دې مـور لـه دې املـه ازار ورسـول شـي چې ماشـوم د هغې دی. کـه ښځه معـذوره نـه وي خـو د استراحت او لـه تکليـف څخـه د بچ کيـدو پـه وجه پی نه ورکوي نو داسې کول ګناه او نافرماني ده او بل دا چې د خپل اولاد سره د محبت نه ساتل دي چې هغه د خپلو پيو نه محروموي ځکه د پيو اثر صـرف د ماشـوم پـه جسـم پـورې اړه نـه لـري بلکي د هغـه پـه ديني تربيـه او اخلاقـــــو هـــــم لـــــوی اثـــــر لـــــري.

او کـه چيرې مـور معـذوره وي او پلار بې وسـه وي نـو د ماشـوم مسـئوليت د اسـلامې حکومـت پـه غـاړه دی اسـلامې حکومـت بـه د ماشـوم د پيـو او روزنې مصارف په غاړه اخلي.

**د مور د شېدو ګټې :**

د مور شېدې د نـورو ټولـو حيوانـاتو د شېدو او مصنوعي شـېدو څخـه غـوره شېدې دي چې لاندې غوروالی لري :

۱- د ماشـوم لپاره د غـذا بهترينـه منبع ده کوم چې ماشـوم د تي رودلـو پـه سـن کې هغه ته ضرورت لري .

۲- دمـور د شـيدو جوړښـت دماشـوم لـه عمـر سـره سـم او د هغـه د اړتيـا پـه تناسب بدلون مومي او د ښه لويېدو (نمو ) سبب ګرځي .

۳- د مورشیدې تل پاکې اوصحي دي، داځکه چې په مستقیمه توګه د مور د تیو څخه د کوچني خولې ته داخلیږي، نورې شیدې کیدای شي په آسانئ سره د لوښو په وسیله ، په لاسونو اونورو شیانو سره ککړې شي.
۴- هغه مور چه خپل اولاد په خپلو شیدو تغذیه کوي د هغوی په بدن کی یو زیات شمیر بدلونونه منځته راځي، له هغې جملې څخه د رحم انقباض یا تولیدل دی .په دې ډول تر ولات وروسته د مور د رحم وینه هم کمیږي او مور ژر صحت منه کیږي او تر ولادت وروسته د هغو میندو میاشتنی عادت چې ماشوم ته خپلې شیدې ورکوي، د هغو میندو په پرتله چې خپل کوچني ته د بوتل شیدې ورکوي، ډیر وروسته شروع کیږي او دا میندې په معمولي ډول ډیرې وروسته حامله کیږي.
۵- د مور شیدې د مور او ماشوم تر مینځ عاطفي پیوند ټینګوي، ځکه ماشوم خپله مور له نژدې کتلی شي: ماشوم یوازې له اته څخه تر پنځلس انچه نیژدې شیان کتلی شي، نو کله چې مور ماشوم ته د تي ورکولو په وخت نږدې او مخامخ وي، همدا د بهترینې عاطفي پیوند جوړیدو وخت دی.
۶- ماشوم د خپلې مور اواز او څیره تر ټولو شیانو مخکې پیژني او تر ټولو ښکلی، عالي او ښه موجود ورته مور وي. مور هم ماشوم ته د شیدو په ورکولو رواني او ذهني تسکین پیدا کوي او پدې ډول د دواړو تر منځ عاطفي پیوند ټینګیږي.

۷- ماشـوم تـه شـيدې ورکـول د مـور بـدن د اميـندوارۍ او زيـږون لـه زيـانونو څخه ژر، ژغوري: ماشوم ته شيدې ورکول په مور کې هغه هورمون افرازوي چـــې رحـــم بيرتــــه خپـــل اصـــلي حالـــت تــــه ورګرځـــوي.
۸- ماشوم ته شيدې ورکول د مور وزن کموي: هغه مور چې ماشوم ته شيدې ورکـوي، پـه ورځ کې ۶۰۰ کالوري مصـرفوي او وزن يې پـه تـدريج سـره تـر اميندوارۍ مخکې مودې ته ورګرځوي.
۹- ماشوم ته شيدې ورکول مور د سينې او تي له سرطانونو ساتي.

**آتم – حضانه (د ماشوم روزنه او پالنه ):**

حضـانت د وړوکي ماشـوم ، ليـوني يـا ضـعيف کـس جسـمي پالنـه لکـه : د خوراک ، څښاک ، خوب ، نظافت تنظيم او پالنه او د ضرر څخه ساتلو ته وايي .

په ټولنه داسې صورتونه ډير پيښيږي چې د ماشومانو مور وفات شي ، يا هغه سخته ناروغه شي نو د ماشومانو پالنې حق د چا دى ؟

همداسې کوم کس ليونى او يا ضعيف او مريض وي چې د ځان احتياجات نشي رفع کولاى نو اسلامي شريعت په دغو صورتونو کې د خضانت حکم جاري کړى دى .

**د حضانت حق چا ته دى ؟**

د احنافو په نزد لومړى حق د هغې مور ته بيا د مور مور (نيا) ،بيا د پلار مور ، بيا خويندې ، بيـا خالـه ګانې ، بيـا د خويـندو لـوڼې ، بيـا د ورونـو لـوڼې ، بيـا

عمـــه ګـــانې ، بيـــا د ميـــراث پـــه ترتيـــب عصـــبات.

جاء فی الفقه الاسلامي وادلته : الأم، ثم أم الأم ثم أم الأب، ثم الأخوات، ثم الخالات، ثم بنات الأخت ثم بنات الأخ، ثم العمات، ثم العصبات بترتيب الإرث .

**د حضانت شرطونه :**

**اول د المحضون ( د پالونکي) شرطونه:**

محضون (پالونکی ) به داسې ماشوم او ماشومه وي چې سن يې تميز ته نه وي رسيدلی ، او يا د زيات سن سړی او ښځه وي چې دومره ضعيف او يا ناروغ وي چې خپله د ځان پالنه نشي کولای او همدارنګه ليونی چې د ځان پالنه نشي کولای.

**الحواضن ( د پالونکو) شرطونه:**

د پالونکو شرطونه په درې قسمه دي لومړی قسم عام دي چې په سړي او ښځه دواړو پورې اړه لري دوهم قسم يوازې په ښځه پورې اړه لري او دريم قسم يوازې په سړي پورې اړه لري.

اول عام شرطونه چې په سړي او ښځه پورې اړه لري:

۱ -دا چې پالونکی به بالغ وي په نابالغ د پالنې مسئوليت نشته.

۲ -دا چې پالونکی به عاقل وي په ليوني باندې د پالنې مسئوليت نشته ځکه هغه خپله احتياج وي.

۳ -دا چې د پالنې توان او وس ولري داسې کس چې د پالنې څخه عاجز وي لکه ناروغ ، معیوب کس او د لوړ سن سړی یا ښځه او یا داسې ښځه چې هغه د خپل اولاد په پالنه مشغوله وي.
۴ -دا چې پالونکی اخلاقي اهلیت ولري په فسق او زنا مشهور نه وي مګر ابن عابدین وايي که یې خپله مور فاسقه او فاجره هم وي هغه د خپل اولاد د پالنې لومړی حقداره ده.
۵ -د امام ابوحنیفه او امام مالک په نزد د پالونکي اسلام شرط نه دی مګر د امام شافعي او امام احمد په نزد اسلام شرط دی ځکه د اولاد د فتنې سبب کیږي.

**دوهم د پالونکو ښځو شرطونه:**

۱ -دا چې ښځه د بل نا محرم کس سره نکاح شوی نه وي کچیرې د محرم کس سره نکاح شوي وي لکه د ماشوم او ماشومې تره سره نو د پالنې مسئولیت لري او که د غیر محرم سره نکاح شوي وي مسئولیت نه لري په دلیل د دغه حدیث : «أنت أحق به ما لم تنكحي«
۲ -دا چې پالونکې ښځه به محرم وي لکه : مور ، نیا ، خور او نورې مګر غیر محرمه به نه وي لکه : د تره لور ، د خاله لور ، د عمه لور او نورې.
۳ -دا چې په پالنه کې منع نه وي کچیرې نږدې حقداره خپل سرپرست منع کړي د فقر له وجې نو هغه نږدې حقداره ته بغیر له اجرې پالنه کولو حق شته.

**دريم هغه شرطونه چې سړي ته خاص شوي:**

١ -دا چې سړي محرم وي کچيرې نجلی وي مګر ځينې فقهاء کرام وايي که يې سن د شهوت سن ته نه وي رسيدلی باک نه لري مثلاً که اوه کلنی ته ورسيږي نو سپارل کيږي به.

٢ -دا چې د پالونکي سړي سره به يې خپله ښځه ، مور يا لور وي ځکه چې سړي د ښځې په شان د اطفالو په احوالو نه پوهيږي.

**حضانت په څه باندې ساقطيږي ؟**

د جمهورو ( الحنفيه ، الشافعيه و الحنابله ) په نزد کله چې حضانت د يو ضرورت او مانع له مخې ساقط شي نو پالونکی بچي به د هغه څښتن ته سپارل کيږي هغه حاجت او موانع لکه:

د مور ناروغي ، د هغې واده ، سفر او فسق.

**د پالونکې ښځې اجرت:** د احنافو په نزد ښځه د نکاح او عدت په وخت کې د پالنې د اجرت حق نه لري ځکه د عدت په وخت کې د رضاع يا پيو ورکولو د اجرت حق هم نلري مګر کله چې عدت ختم شي او د نکاح څخه ووځي د پالنې د اجرت حق لري.

جاء في فقه الاسلامي وادلته:

وقال الحنفية: لا تستحق الحاضنة أجرة على الحضانة إذا كانت زوجة أو معتدة لأبي المحضون في أثناء العدة، سواء عدة الطلاق الرجعي أو البائن في الأوجه، كما لا تستحق أجراً على الإرضاع، لوجوبهما عليها ديانة، ولأنها

تستحق النفقة في أثناء الزوجية والعدة، وتلك النفقة كافية للحضانة. أما بعد انقضاء العدة فتستحق أجرة الحضانة؛ لأنها أجرة على عمل.

**د پالونکي ماشوم او ماشومې انتقال بل ښارته:**

کچیرې پالونکې د طفل مور وي او مور له بل کس سره نکاح کړې وي نو هغه به د خاوند په کور کې وي پالونکې ښځه بل ځای ته څوک نشي نقلولای ځکه ښځه د خپل خاوند تابع وي.

کچېرې د مور نه علاوه بل څوک لکه نیا ، عمه ، خاله یا بل څوک وي نو طفل به هغوی پخپل کور کې ورسره اوسه وي پالونکي به د هغه د پلار کره نه نقلوي مګر دا چې د سرپرست اجازه يې وي.

**د پالونکي ماشوم لیدنه کول:** کچېرې بچې د پالونکي ښځې سره وي نو د هغه پلار ته يې شرعاً د لیدلو حق شته که ځای لنډ وي هره ورځ يې لیدلای شي او کچیرې د پالنې موده ختمه وي یا په څه وجه د هغه د مور پالنه ختمه شوی وي او طفل د هغه د پلار سره وي مور ته د لیدلو حق شته چې که امکان وي هره ورځ يې وويني یا هر اونۍ.

(فقه الاسلامي وادله بحوله : الدر المختار ورد المحتار: ۲/۸۸۵).

**د بچي د پالنې او روزنې موده:**

د احنافو په نزد بچی به د تمیز تر سن پورې پالل کیږي څو پخپله خوراک ، څښاک ، میتازې او استنجاء وکولای شي د تمیز سن د احنافو په نزد اوه کاله

دی په دلیل د دغه حدیث شریف : «مروا أولادكم بالصلاة لسبع».ځکه چې په دغه سن کې د طهارت توان لري.

## پنځم فصل

## څلورمه مرحله

## دوو کالو څخه تر بلوغ پورې

## ديني ، عقيدتي ، عبادي ، اخلاقي اوعلمي روزنه

### اول- د ماشومتوب په مرحله کې د عقیدې اهمیت

د اسلام په تربیوي منهج کې په ماشومتوب کې د سالمې عقیدې تأسیس او بنسټ زیات اهمیت لري .

ځکه چې ماشوم د خپلو والدینو سره امانت دی ، او زړه یې د هر ډول نقش او فکر څخه پاک او خالي وي او د هر ډول نقش او فکر ځایولو لپاره اماده وي او د هر ډول فکر او روزنې لپاره کاملاً مایل وي . نو د هغه په زړه کې د سالمې عقیدې بنسټ د دنیا او آخرت خیر او سعادت دی او په دغه ثواب کې به د هغه والدین او هر مربي معلم شریک وي .

او په دې لاره او مسئولیت کې هر ډول غفلت کول سخت خطرناک دي .

الله سبحانه وتعالى فرمایلي : [يا أيها الذين آمنوا قوا أنفسكم وأهليكم نارا وقودها الناس والحجارة] (سورة التحريم، الآية:٦)

ژباړه: ای مؤمنانو! خپل ځانونه او خپل اهل عیال له هغه اور څخه وساتئ چې خس یې خلک او تیږي دي.

قرآنکریم د لقمان قیصه را اخلي چې هغه خپل زوی ته لومړی د توحید په باره کې ټینګار کوي او خپل زوی د شرک څخه منع کوي :

ځکه چې د انسانانو او پیریانو د پیدایښت اصلي مقصد دا دی چې یوازې د الله تعالی عبادت وکړي او له هغه سره هیڅ څوک شریک نکړي .

الله تعالی فرمایي:[وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ] (الذاریات: ۵۶) .

ژباړه: او نه مو دي پیدا کړي پیریان او انسانان مګر دا چې عبادت وکړي زما .

دا ځکه چې هغه (جل جلاله ) زمونږ پیدا کوونکی ، روزې را کوونکی او فنا کوونکی دی ، لقوله سبحانه وتعالی :[اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ * الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً وَأَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَّكُمْ فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَندَادًا وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ] (البقرة: ۲۱، ۲۲).

ژباړه: (عبادت وکړئ د هغه رب چې تاسې او له تاسې څخه مخکې ټول خلک یې پیدا کړي دي، تر څو تاسې پرهیزګاران شئ .هغه ذات چې ستاسو لپاره یې ځمکه وغوړوله، آسمان یې چت جوړ کړ او له پاسه یې اوبه را ښکته کړې، په اوبو سره یې ستاسې د خوراک لپاره ډول ډول میوې را وښکلې . نو باید تاسې هم له الله پاک سره نور څیزونه برخه من ونه ګرځوئ ).

نو ویلای شو چې د اولاد د روزنې لپاره د ماشومتوب مرحله خاص اهمیت لري چې همدا مرحله د سالمې عقیدې ، ښو عاداتو او اخلاقو د روزنې لپاره بنسټیزه مرحله بلل کیږي چې ددې مرحلې اهمیت په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي :

۱- د طفولیت مرحله د هر قسم فکر څخه پاکه او خالي وي نو د طفل زړه او فکر د سالمې عقیدې د روزنې لپاره کاملاً خالي او اماده وي .

۲- په ماشومتوب کې حفظ او یادول داسې وي لکه د کانړې کرښه چې بیا په آسانۍ له مینځه نه ځي ځکه چې د ماشوم فکر له نورو مشغولیتونو خالي وي .

۳- د طفولیت مرحله د پاکۍ او صفایي مرحله وي چې زړه او فکر یې د هر ډول فساد ، منافقت او ګناه څخه پاک وي ، کوم زړه چې له ګناه او فساد څخه پاک وي په هغه کې د عقیدې او ایمان نور، پند او نصیحت ځای نیسي او په خوشحالۍ سره یې استقبال کوي .

۴- فاسد ماحول او په خاصه توګه کفري ماحول د طفل په عقائدو باندې اثر کوي نو په همدې مرحله کې سالمې اسلامي عقیدې ته پاملرنه خاص اهمیت لري .

۵- کله چې په طفولیت کې ماشوم په سالمه عقیده او ښو عاداتو او اخلاقو روزل شي نو د بلوغ څخه وروسته هغه ته اصلاح او تقوی ډیره آسانه وي .

**د اسلامي عقيدې بنستيز ارکان**

**اول – د اسلام ارکان:**

**د اسلام معنی :**

اسلام په لغت کې د الله تعالی اوامرو ته تسليم او غاړه ايښودلو ته وايي، په اصطلاح کې په کلکه ګواهي کول چې د الله تعالی څخه پرته بل هيڅوك په حقه دعبادت لايق نشته، او محمد صلی الله عليه وسلم د الله تعالی استاذی او پيغمبر دی داسې ګواهي چي په زړه باور او تصديق او په ژبه اقرار، او په اندامونو ددي ګواهي په مقتضی عمل وکړي (صالح اعمال تر سره کړي).

**د اسلام پنځه ارکان (بناوې) :**

د اسلام پنځه بناوي دي : د شهادتين کلمه ، لمونځ ، زکات ، د رمضان روژه او حج:

«بُنِيَ الإِسْلاَمُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لا إله إلا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ وَإِقَامِ الصَّلاَةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَحَجِّ الْبَيْتِ وَصَوْمِ رَمَضَانَ». [متفق عليه]

ژباړه: «د اسلام دين په پنځه بنسټونو باندي جوړ او ولاړ دی: ددې خبرې ګواهي کول چه د عبادت او بندګۍ مستحق او لايق بل هيڅ څوک نشته مګر يوازې الله (جل جلاله) دی، او محمد صلی الله عليه وسلم د الله تعالی ريښتينی پيغمبر او استاذی دی، لمونځ کول ، زکات ورکول ، د رمضان روژه نيول او د بيت الله شريف حج کول .

په اسلام کښې لمړنی فرض دادی چه تر هر څه د مخه د لمړني بنسټ (کلمه توحید) معنی او احکام زده کړل شي.
لکه څرنګه چې رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي : کله مو چی اولاد په خبرو پیل وکړي نو لومړی ورته «لااله الاالله» زده کړی .

**د لا اله الا الله معنی او شرطونه:**

(لا اله): نشه معبود بر حق، (الا الله) مګر یو الله دی .

یعنې د کلمې توحید دوه ارکان لري :

اول: لا اله – نفی ده، یعنې د عبادت هیڅ لائق نشته .

دوهم:الا الله – اثبات ، یعنې:مګر یوازې معبود برحق او لائق د عبادت الله پاک دی .

د «إله» معنی معبود دی، نو ټول هغه عبادتونه او بندګی چه د الله تعالی پرته بل چا ته کیږي هغه باطل او مردود دي.

**د توحید د کلمې (لا اله الا الله ) شرطونه :**

١- علم : دا چې د «لا اله الا الله » په معنی او مقصد به پوه وي کوم چې مخکې بیان شول .

٢- یقین : دا چې په دې کلمه باندې به پوره یقین لري شک او تردد به پکې نه وي .

٣- اخلاص : دا چې دا کلمه به یوازې د الله تعالی لپاره د ثواب او سعادت په نیت وایي ، ریاء او نفاق به پکې نه وي .

۴- محبت : دا چې دا کلمه به د محبت له مخې وايي ، بغض او بد ګڼل به پکې نه وي .

۵- صدق : دا چې دا کلمه او د هغه لاندې ټولو شرايطو به تصديق کوي .

۶- انقياد : دا چې ددې کلمې غوښتنو ته به غاړه ږدې ، د اسلامي شرعيت ټول اوامر به مني ځکه چې ايمان او عمل صالح لازم او ملزوم دي د عمل صالح پرته نجات او برى نشته .

لقوله سبحانه وتعالى : [[وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ* إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ]

( قسم دى په زمانه يقيناً ټول انسانان په زيان او خسران کې دي، پرته له هغو کسان چې ايمان او نيک عملونه يې تر سره کړي وي .

۷- د باطل څخه انکار : دا چې د باطل ، طاغوت او کفر څخه به انکار کوي ، د اسلامي عقيدې او توحيد سره بل هيڅ قسم باطله عقيده نشي جمع کيداى .

**د «محمد رسول الله» معنى :**

د محمد رسول الله معنى دا ده چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د الله تعالى بنده او رښتينى پيغمبر دى، په رسالت باندې د ګواهي ورکولو غوښتنه دا ده چې مسلمان به ايمان لري چې الله تعالى خپل پيغمبر محمد بن عبدالله بن عبد المطلب صلى الله عليه وسلم د نړۍ ټولو پيريانو او انسانانو ته خپل پيغمبر او استاذى استولى دى، تر څو دوى ته امر وکړي چه يوازې د يو الله

تعالى عبادت او بندګي وکړي، او د هغه ټولو شيانو له عبادت او بندګۍ څخه ځان وژغوري چه له الله تعالى څخه پرته يي عبادت او بندګي کيږي، او هم دوى ته د اسلام د مقدس دين احکام بيان کړي.

**د ايمان تعريف :**

ايمان په لغت کې تصديق او باور ته وايي او دشريعت په اصطلاح کې ايمان په زړه تصديق او په ژبه اقرار کول دي په ټولو مؤمن به شيانو .

**د ايمان ارکان :**

د ايمان ارکان عبارت دي له: په الله تعالى ايمان، په ملائکو ايمان، په آسماني کتابونو ايمان، په رسولانو ايمان، په ورځ دآخرت ايمان، په قدر او شر ايمان او په بيا ژوندې کيدو ايمان .

**اول – پر الله سبحانه وتعالى ايمان :**

د ايمان لومړى رکن د الله سبحانه وتعالى په وجود او وحدانيت باندې ايمان لرل ،په الله سبحانه وتعالى باندې د ايمان او اعتقاد لرلو خلاصه :

۱- د الله تعالى په وجود باندې د ايمان دليل څه دى ؟ د هغه (جل جلاله ) د قدرت علامې او نښانې لکه : ورځ په شپه او شپه په ورځ بدلوي، له ژوندې څخه مړى او له مړي څخه ژوندى پيدا کوي، نو ايا د الله پرته بل څوک شته چې دا کار تر سره کړي؟ نه.

لقوله سبحانه وتعالى :

[تُولِجُ اللَّيْلَ فِي الْنَّهَارِ وَتُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الَمَيَّتَ مِنَ الْحَيِّ وَتَرْزُقُ مَن تَشَاء بِغَيْرِ حِسَابٍ] (آل عمران :۲۷) .

ژباړه: ته شپه په ورځ کې ننه باسي (شپه په ورځ بدلوې) او ته ژوندی له مړي را وباسې او مړی له ژوندي او چې چا ته دې خوښه شي بې حسابه رزق ورکوې .

او د الله تعالی په وجود باندې عقلي دليل دا دی چې دا موجود مخلوق او ستره هستي چې په منظم ډول روان دي ، لمر را پورته کيږي او ډوبيږي ، ورځ په شپه او شپه په ورځ بدليږي يو اداره کوونکي او پالونکي ته ضرورت لري چې د ټولې هستۍ پيدا کوونکی ، اراده کونکی او پالونکی ستر رب (جل جلاله ) دی .

هيڅ داسې شی نشته چې هغه يو پيدا کوونکی او جوړونکی ونه لري ، پس د هر جوړ شوی او پيدا شوی شی په دې باندې دلالت کوي چې هغه صانع او جوړونکی لري ، موجود کائينات او لويی هستي ټول په دې باندې دلالت کوي چې هغه يو پيدا کوونکی او ستر ښتن او پالوونکی لري چې الله سبحانه وتعالی دی .

۲- الله تعالی يو دی په ذات او صفاتو کې شريک نلري، رب، خالق او رازق د ټول عالم دی او هيڅ شريک نلري .

لقوله سبحانه وتعالی: [وَإِلَهُكُمْ إِلَـهٌ وَاحِدٌ لَّا إِلَـهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ] (البقرة: 163).

ژباړه: همدا یو الله دی . پرته له دی مهربان او ښوونکي الله څخه بل هیڅ لائق د عبادت (معبود بر حق) نشته.

دلیل دا دی کچېرې العیاذ بالله دوه خدایان وای نو د کائناتو په تنظیم کې به خامخا بې نظمي راغلی وه .

لقوله سبحانه وتعالی :[لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلاَّ اللَّهُ لَفَسَدَتَا فَسُبْحَانَ اللَّهِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ] **(الانبياء ٢٢)** .

ژباړه:کچېرې په ځمکه او آسمان کې پرته له الله نور خدایان وای نو د دواړو نظام به کډوډ شوی وو د پاچاهۍ څښتن له هغه څه نه پاک دی چې مشرکان یې وایي .

٣- د الله سبحانه وتعالی سره هیڅ شی مشابه نه دي نه په ذات او نه په صفاتو کې :

لقوله سبحانه وتعالی :[لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ] (الشوری ١١) .

ژباړه: هغه ته ورته هیڅ نشته . د هر څه ښه اورېدونکی او ښه لیدونکی دی .

**عقلي دلیل :**

په هیڅ جوړ شوي شي کې د خپل جوړونکي خاصیت او صفت نشته مثلاً نجار د لرګي څخه کرکۍ جوړوي آیا د کړکۍ صفت له نجار سره مشابه دی ؟ نه هیڅکله نه .

همداسې الله سبحانه وتعالی د خپل مخلوق او جوړې کړې هستۍ سره هیڅ شباهت نلري .

۴- الله سبحانه وتعالی معبود برحق دی (لا اله الا الله) د الله تعالی پرته هیڅ څوک د عبادت لائق نه دي .

۵- الله سبحانه وتعالی همیشه دی او همیشه به وي، فنا کېدل نلري او تل تر تله ژوندی دی .

لقوله سبحانه وتعالی: [كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ] (القصص :۸۸) .

ژباړه:له هغه پرته هر شی هلاکېدونکي دي .

وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي لا يَمُوتُ] (الفرقان: ۵۸) .

ژباړه: او په هغه ژوندي ذات توکل وکړه چې هیڅکله نه مري .

۶- هر څه چې په جهان او عالم کې تر سره کیږي د الله تعالی په اراده تر سره کیږي، هغه (جل جلاله) په هر څه قادر دی، د ټولو شیانو مرگ او ژوند، عزت او ذلت د هغه (جل جلاله) په واک کې دي، کټه رسول، دفع ضرر، خیر او شر ټول د الله تعالی د طرفه دي .

[قُلِ اللَّهُمَّ مَالِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَاءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَاءُ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ إِنَّكَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ] (آل عمران:۲۶).

ژباړه: (ای محمده!) ووایه: ای الله! خاوند د پاچاهۍ یې، ته پاچاهي هغه چا ته ورکوې چې ستا خوښه شي او چې له چا نه چې ستا خوښه شي ترې اخلې

يې . چاته دې چې خوښه شي عزت ورکوې او چې چا ته دې چې خوښه شي ذليلوې يې . ستا په لاس کې خير دی او ته په هر شي قادر يې .

[ومَا تَشَاءُونَ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ] (التكوير:٢٩) .

ژباړه: او نه شئ قصد کولی تاسې (د سمې لارې) مګر هغه چې اراده وفرمايي الله چې پالونکی د ټولو عالميانو دی .

٧- الله تعالی په هر څه عالم دی د هغه څخه هيڅ شی پټ نه دي .

[وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاء إِلَـهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَـهٌ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ] (الزخرف ٨٤).

ژباړه: او همدغه يو الله په آسمان کې معبود دی او په ځمکه کې هم . دحکمت خاوند دی او په هر څه پوه دی .

٨- الله تعالی هيڅ چا ته محتاج نه دی ، نه له چا څخه پيدا شوی دی او نه يې څوک زېږولي دي .

لقوله سبحانه وتعالى : [قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ * اللَّهُ الصَّمَدُ * لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ * وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ (اخلاص) .

**دوهم – پر ملائکو ايمان :**

پر ملائکو باندې ايمان لرل د ايمان رکن دی

ملائکې د الله تعالی مخلوق دی چې له نور څخه پيدا شوې دي، يو لحظه د الله تعالی نا فرماني نه کوي ،ملائکې د الله تعالی د حکم او ارادې پرته هيڅا ته د نفع او ضرر اجازه نلري په هغه باندې توسل شرک دی .

ملائکې خوړل او څښل نه کوي، نکاح نه کوي او نه هم خوب کوي.

ابلیس او جنیات د ملائکو له ډلې څخه نه دي ځکه ملائکې له نور څخه پیدا دي او ابلیس له اور څخه پیدا شوی دی .

ملائکې مؤمنان خوښوي او کافران نه خوښوي .

ملائکو ته الله تعالی ددې قدرت ورکړی چې په مختلفو شکلونو ځان بدل کړي .

که څه هم د ټولو ملائکو کار او دنده د الله تعالی تسبیح او تهلیل او د هغه د امر پر ځای کول دي او د هرې یوې وظیفه معلومه ده، د ځینو ملائکو وظیفې په لاندې توګه دي :

**د جبرائیل علیه السلام وظیفه:**

پیغمبرانو ته وحی راوړل، د الله تعالی په حکم د کافرانو په مقابل کې د مسلمانانو مرسته کول، د الله په حکم د نافرمانو بندګانو باندې دعذاب راوړل .

**د مکائیل علیه السلام وظیفه :**

د الله تعالی په حکم د مخلوقاتو د رزق او روزې انتظام، د وریځو، بارانونو، بحرونو او سیندونو انتظام .

**د ملک الموت وظیفه:**

د الله تعالی په حکم د ساه لرونکو مخلوقاتو څخه روح اخیستل .

**د اسرافيل عليه السلام وظيفه :**

د الله تعالی په حکم د قيامت د قيام پر مهال د ټولو مخلوقاتو د فنا کولو او بيرته ژوندي کولو لپاره د شپېلۍ پوکی کول .

**کرام الکاتبين :**

د خلکو ښه او بد عملونه ليکل .

**حفظه ملائکې:**

د انسانانو ساتنه او څارنه .

**نکير او منکر:**

په قبر کې د مړو څخه د رب، دين، نبي پوښتنه کوي .

**دريم، د الله تعالی په کتابونو ايمان :**

الله سبحانه و تعالی پر خپلو رسولانو باندې د بشر د هدايت او لارښوونې لپاره کتابونه نازل کړي دي چې د هغو په وسيله خلک د الله توحيد ته بلل شوي، په نيکو کارونو ورته امر شوی او له بدو کارونو څخه منع شوي وو .

د الله تعالی په کتابونو او صحيفو باندې ايمان لرل د ايمان رکن دی، د الله تعالی په کتابونو باندې د ايمان لرلو مقصد دا دی چې دغه کتابونه د الله د طرفه نازل شوي، د هغه (جل جلاله) بلا کيف کلام دی، په هغو ټولو کې موجود اوامر او نواهي حق دي .

او دا ايمان لرل چې مخکنې کتابونه د قرآن په نزول سره منسخ شوي دي .

[وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَابِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُم بَيْنَهُم بِمَا أَنزَلَ اللّهُ] (سورة المائدة: ۴۸)

ژباړه: مونږ تاته په حقه هغه کتاب نازل کړی دی چې له تا وړاندې کتابونه رښتني ګڼي او ساتونکی يې دی پس حکم کوه په ما انزل الله .

د حکم څخه مطلب دادی چې د قرآن پرته په هيڅ پخواني کتاب باندې عمل او حکم کول جايز نه دي .

**آسماني کتابونه او صحيفې په لاندې ډول دي :**

تورات په موسی عليه السلام نازل شوی .

زبور په داود عليه السلام نازل شوی .

انجيل په عيسی عليه السلام نازل شوی .

قرآن په محمد صلی الله عليه وسلم نازل شوی .

صحيفې :

د صحيفو شمير معلوم نه دی ځينې صحيفې په حضرت آدم عليه السلام ، ځينې په شيث عليه السلام ، ځينې په ابراهيم عليه السلام نازل شوې دي او ځينې علماء وايي :

۱۰ صحيفې په آدم عليه السلام نازلې شوې .

۱۰ صحيفې په ابراهيم عليه السلام نازلې شوې .

۵۰ صحيفې په شيث عليه السلام نازلې شوې .

۳۰ صحيفې په ادريس عليه السلام نازلې شوې دي .

**په قرآنکريم باندې ايمان :**

يقيناً چې قرآنکريم د الله تعالی کلام دی، د الله تعالی آخرنی کتاب دی د قرآن نه وروسته د قيامت تر ورځې بل کتاب نه نازليږي او نه هم بل پيغمبر راځي، د قرآن په نزول سره ټول کتابونه منسوخ شوی دي .

دا مقدس کتاب د الله تعالی له طرفه د جبرئيل په واسطه په حضرت محمد صلی الله عليه وسلم باندې په (۲۳) کلونو کې نازل شوی دی چې (۳۰) سپارې او (۱۱۴) سورتونه لري .

مونږ په قرآن ايمان او باور لرو چې الله تعالی دغه کتاب د ټول بشريت د لارښوونې لپاره نازل کړی دی، نړيوال کتاب دی په کوم قوم او ژبې پورې خاص نه دی بلکي د ټول بشريت لپاره لارښوونه کوي او غوښتنه ترې کوي چې د الله تعالی په توحيد باندې ايمان راوړئ، د طاغوت څخه منع شئ تر څو په دنيا او آخرت کې د سعادت او نيکمرغۍ ژوند مو په برخه شي .

قرآنکريم د لوح محفوظ څخه ټول په يو ځل په همغه ترتيب چې اوس موجود دی د جبرائيل په واسطه د دنيا آسمان بيت العزت ته نازل شوی او وروسته لږ لږ په (۲۳) کلونو کې نازل شوی دی .

رسول الله صلی الله عليه وسلم يو شمير صحابه ؤ ته هدايت کاوه چې هغوی قرآن حفظ کړي او ځينو ته يې دنده سپارلې وه چې قرآن وليکي .

قرآنکريم څنګه چې الله تعالی نازل کړی دی جبرئيل عليه السلام به پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته لوستلو او رسول الله صلی الله عليه وسلم به په

هماغـه شـان صحابه کرامـو تـه ور زده کـړی دی او پرتـه لـه تغير او تحريـف څخه مونږ ته رسيدلی دی او د تل لپاره به د تحريف څخه پاک او منزه وي .

**څلورم، په رسولانو باندې ايمان :**

د الله تعالی رسولان د الله تعالی استاذې دي چې د الله توحيد او عبادت ته بلوونکي او لارښوونکی دي او د طاغوت او شرک څخه منع کوونکي دي .

په رسولانو باندې ايمان لرل د ايمان څلورم رکن او حتی د يو رسول څخه انکار کفر دی .

[إِنَّ الَّـذِينَ يَكْفُـرُونَ بِـاللَّهِ وَرُسُـلِهِ وَيُرِيـدُونَ أَنْ يُفَرِّقُـوا بَـيْنَ اللَّهِ وَرُسُـلِهِ وَيَقُولُـونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ بِبَعْضٍ وَيُرِيدُونَ أَنْ يَتَّخِذُوا بَيْنَ ذَلِكَ سَبِيلاً ...] (النساء:150).

ژباړه: يقيناً کوم کسان چې په الله او د هغه په رسولانو کافران کيږي او غواړي چې د الله او د هغه د رسولانو تر مينځ جلاوالی راولي او وايي چې مونږ په ځينو رسولانو ايمان راوړو او په ځينو يې نه راوړو او غواړي چې په دې مينځ کې يوه ليار ونيسي .

په رسولانو باندې د ايمان مقصد دادی چې هغوی د الله تعالی د جانبه د بشريت د لارښوونې لپاره را ليږل شوی دي، په هغوی باندې نازل شوي حق دي، د هغوی شريعت حق دی .

پيغمبران عليه السلام د کبيره او صغيره ګناهونو څخه پاک دي، ټول نارينه

دي، ځینې پر ځینو نورو افضل دي، د ټولو پیغمبرانو افضل او آخرنی رسول محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم دی .

**پنځم،د قیامت په ورځ ایمان :**

یوم القیامة ځکه ورته وایي چې په دې ورځ ټول خلک د حساب او جزاء لپاره را ټولیږي او یوم الآخر ځکه ورته وایي چې دا د دنیا آخري ورځ ده .

د قیامت په ورځ ایمان شامل دی په لاندې امرو باندې :

۱- په قبر کې د ملائکې په پوښتنه کولو او همدارنګه د قبر په نعیم باندې لپاره د اهل طاعت او عذاب لپاره اهل معصیت باندې ایمان لرل .

۲- په بیا ژوندي کېدو باندې ایمان، کله چې دوهمه شپیلۍ ووهل شي نو خلک به د الله حضور ته حاضر کړ شي .

۳- د قیامت په ورځ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حوض کوثر باندې ایمان لرل .

لقوله سبحانه وتعالی: [(إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ..](الکوثر:۱).

۴- د قیامت په ورځ په حساب او جزا باندې ایمان لرل .

[إِنَّ إِلَيْنَا إِيَابَهُمْ- ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُمْ] (سورة الغاشیة:۲۵-۲۶) .

ژباړه: یقیناً چې بیرته به مونږ ته راځئ، بیا د دوی سره حساب زمونږ کار دی .

۵- په میزان باندې ایمان لرل، داسې تله چې د ذرې په اندازه نیک او بد اعمال تلي .

[وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا] (الأنبياء:۴۷) .

ژباړه: مونږ به د قیامت په ورځ د انصاف تلې کیږدو نو په هیڅا به هیڅ ډول تیری ونه شي .

۶- په پل صراط باندې ایمان لرل، کوم چې د دوزخ د پاسه جنت ته تیر شوی چې هر څوک به د خپل نیک عمل په وسیله له هغه څخه تیریږي څوک د سترګو د رپ په شان، څوک د برق په شان، څوک د باد په شان، څوک د آس د تګ په شان .... تیریږي .

۷- په جنت او دوزخ ایمان لرل، چا چې ایمان راوړی وي او ښه عملونه یې کړي وي هغه به جنت ځي، او چا چې ایمان نه وي راوړی هغه به همیشه په دوزخ کې وي . او د چا چې ګناهونه پر نیکو کارونو درانه شوی وي هغوی به د څه وخت لپاره دوزخ ته ځي .

لقوله سبحانه وتعالى: [فَأَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ * فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَاضِيَةٍ * وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ * فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ * وَمَا أَدْرَاكَ مَا هِيَهْ * نَارٌ حَامِيَةٌ] (القارعه) .

۸- د رسول الله صلى الله عليه وسلم په شفاعت باندې ایمان لرل چې الله تعالى هغه ته د شفاعت اجازه کړې ده او په ورځ د آخرت به د خپل امت شفاعت کوي .

نبي صلى الله عليه وسلم فرمايي: «أسعد الناس بشفاعتي يوم القيامة من قال لا إله إلا الله خالصا من قلبه » (رواه البخاري).

ژباړه: د قیامت په ورځ به د خلکو څخه زما د شفاعت زیات سعادت دهغه چا په برخه وي چې چا د زړه په اخلاص سره ویلي وي چې: لا اله الا الله..

**شپږم، په قضاء او قدر ایمان :**

قدر یا تقدیر په دې معنی دی چې الله (جل جلا له) په ټولو پیدا کړیو اشیاؤ باندې د پیدا کیدو مخکې عالم دی او هغه (جل جلا له) له ځانه سره لیکلي دي او هر څه چې مینځ ته راځي هغه د الله (جل جلا له) په اراده باندې مینځ ته راځي او په تقدیر باندې ایمان لرل د ایمان یو رکن دی لکه څنګه چې جبریل علیه السلام رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د ایمان په باره کې تعلیم ورکړی دی.

د انسان عادت دا دی چې هر شی د خپل فکر او پوهې له رویه څیړي، د الله (جل جلا له) قدرت او د قدرت دومره لوړې نښانې دي چې د هغه څیړل د انسان په عقل او پوهې سره ډیر مشکل دي .

ځکه مونږ د سبا ورځې په راتلونکو حالاتو باندې نه پوهیږو علم نه وریاندې لرو، خو الله (جل جلا له) چې څه مخلوق پیدا کړی دی په ازل کې په هغوی باندې پوره علم لري .

مثلاً یو کس ګناه کوي چې دا د الله (جل جلا له) نافرماني کول دي الله (جل جلا له) ور باندې ناراضه کیږي خو د خپل بنده په دغه حالت باندې هم په ازل کې عالم دی چې زما بنده به په فلاني وخت کې دغه نافرماني کوي، او یو بل کس ښه عمل کوي الله (جل جلا له) له هغه څخه راضي کیږي او په

ازل کې په هغه باندې علم لري چې زما دغه بنده به په فلانې وخت کې دغه ښه کار تر سره کوي .

يعنې دمخلوق په ټولو حادثاتو باندې په ازل کې الله (جل جلا له) عالم دی او په تقدير کې يې شامل دي .

الله (جل جلا له) د خپلو بندګانو په حالاتو باندې علم لري او هغه يې په تقدير کې شامل دي او انسان يې مختار کړی دی او هغه ته يې دتصميم نيولو توان ورکړی دی او د هغه د پاره يې وسائل آماده کړی دي تر څو دهدايت لاره اختيار کړي او که څوک وغواړي د هدايت لاره اختيار کړي الله (جل جلا له) به هغه ته هدايت وکړي :

[وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ * وَمَنْ يَهْدِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ مُضِلٍّ أَلَيْسَ اللَّهُ بِعَزِيزٍ ذِي انْتِقَامٍ] (الزمر ٣٦-٣٧) .

ژباړه: او هر څوک چې الله ګمراه کړ بيا هيڅوک ورته لار نشي ښودلای او چاته چې الله هدايت وکړي بيا يې هيڅوک بې لارې کولای نشي . آيا الله په هر څه برلاسی او پوره انتقام اخيستونکی نه دی؟

او هر چا چې د خير اراده وکړه الله جل جلا له به د هغه مرسته وکړي او هغه لار به ور ته آسانه کړي:

لقوله تعالی: [فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى * وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى * فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَى] (الليل ٥-٧) .

ژباړه: چاچې ورکړه او پرهيزګاري وکړه، او ښيګڼه يې رښيتنې کړه، نو ډير ژر به يې د آسانی لپاره جوړ کړو .

يعنې: چا چې د الله (جل جلا لـه) پـه لار کې شـتمني ولګوله او د الله لـه نافرمانی نـه يې ډډه وکړه او پـه ښـه خبره يې تصـديق وکړ، نـو هغـه تـه بـه دآسانې لارې آسانتيا ورکړو .

**په تقدير باندې ايمان لرلو مقصد :**

١- د الله تعالی په علم باندې ايمان لرل چې د هغه علم پر ټولو کائناتو باندې احاطه کړې ده او د هغه له علم څخه د ذرې قدرې شی هم پټ نه دي .

[هُوَ اللَّهُ الَّذِي لا إِلَهَ إِلا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ] (الحشر:٢٢).

ژباړه: الله هغـه ذات دی چې پرتـه لـه هغـه هيڅ معبـود نشـته . پـه پټـو او ښکاره پوه دی .

٢- د الله تعالی په اراده باندې ايمان، يعنې هر څه چې تر سره کيږي هغه به د الله تعالی په اراده تر سره کيږي ځکه دا هر څه د الله تعالی مخلوق دی او ټول مخلوق د ده په واک کې دی .

[وَمَا تَشَاءُونَ إِلا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ] (التکوير :٢٩) .

٣- په دې باندې ايمان لرل چې الله تعالی ټول پيدا کړي شيان په لوح محفوظ کې ليکلي او ثبت کړي دي .

[أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاءِ وَالأَرْضِ إِنَّ ذَلِكَ فِي كِتَابٍ إِنَّ ذَلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ] (الحج/٧٠) .

ژباړه: او آیا ته په دې نه پوهیږې چې د آسمان او ځمکې ټول شیزونه دالله په علم کې دي؟ دا ټول هر څه په یو کتاب کې دي او دا کار الله پاک ته ډیر آسان دی .

۴- هر څه د الله خلقت دی، مثلاً انسان چې هر کار کوي د الله تعالی دتقدیر او ارادې پرته یې نشي کولای ځکه د انسان ټول بدن، د بدن سیستم، فعالیت کول د الله تعالی مخلوق دی .

[وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ] (الصافات :۹۶) .

ژباړه: او الله پیدا کړي یی تاسې او هغه چې کوئ تاسې .

کله مو چې خپلو اولادونو ته د کلمه توحید او د ایمان ارکانو ضروري زده کړه ورکړله وروسته د هغه په زړه کې د الله تعالی ، رسول صلی الله علیه وسلم ، اهل بیت ، صحابه کرام او صالح مسلمانانو د محبت نصیحت ورکړئ .

**اول- د ماشوم په زړه کې د الله تعالی د محبت ځایول :**

۱- دا ځکه چې الله تعالی مونږ د عدم څخه پیدا کړي یو او په ټول مخلوق یې غوره کړي یو او بیا یې مونږ ته د اسلام دین چې د دنیا او آخرت سعادت دی په نصیب کړی دی او په آخرت کې یې د سترو نعمتونو وعده را سره کړې ده .

۲- دا ځکه چې حب او محبت په پټه او ښکاره سره د احترام او هیبت سبب دی ، تر څو زمونږ اطفال د خپل رب (جل جلاله) احترام وکړي چې د الله تعالی احترام د هغه د احکامو او اوامرو پر ځای کول دي او هیبت د عذاب څخه ویره کول دي .

۳- دا ځکه چې اطفال غالباً د خپلو والدینو سره تعلق لري هغوی یې روزنه او پالنه کوي ، اطفالو ته دا په فکر کې ورکول چې رب (جل جلاله ) چې حی القیوم دی تر خپلو والدینو پر بنده ګانو مهربانه دی او کچېرې والدین هم نه وي د خپلو بنده ګانو اصلي ساتوونکی او پالونکی دی .

۴- دا ځکه چې د الله تعالی محبت لرل د هغه د کلام قرآن سره د محبت لرلو وسیله جوړیږي او د الله تعالی د احکامو سره د محبت سبب ګرځي مثلاً : د لمانځه سره یې محبت پیدا کیږي کله چې آذان واروي په پوره شوق سره جومات ته ځان رسوي ، او په دې باندې پوهیږي چې الله تعالی څوک خوښوي :پاک کسان ، ښه او نیک کسان ، رښتنې او صادقان ، صبرکوونکي ، پر الله تعالی توکل کوونکي او الله تعالی د مؤمنان کومک او نصرت کوي او الله تعالی خائنان ، فاسقان ، ظالمان ، مفسدین ، کبر کوونکي او کافران نه خوښوي .

لقوله سبحانه وتعالی : [إِنَّ اللَّهَ يُدَافِعُ عَنِ الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ اللَّهَ لاَ يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ] (الحج :۳۸ ).

ژباړه:یقیناً چې الله تعالی دفع کوي (د کفارو مکر) له هغو کسانو څخه چې مؤمنان دي او یقیناً چې الله تعالی هر خائن او ناشکره نه خوښوي .

۵- دا ځکه چې د الله تعالی محبت په ښه زړه او شوق سره د اطاعت او د منکراتو څخه د پرهیز سبب دی .

۶- دا ځکه چې د الله تعالی محبت په دې باندې اقرار دی چې هغه (جل جلاله) په هر وخت او هر ځای کې زما پر اعمالو او کړنو خبردار دی چې په

دې سره انسان ته راحت او اطمنان حاصلیږي او د فاسدو نفسي امراضو څخه ساتل کیږي .

۷- دا ځکه چې د انسان عزت او کرامت په ایمان او تقوی کې دی نه په مال او مرتبه کې .

کچیرې مونږ د خپل اولاد د پاره عزت او کرامت غواړو نو دا عزت او کرامت په سالمه عقیده او تقوی کې دی:[ إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ] (الحجرات :۱۳)
.

ژباړه: یقیناً د تاسې څخه ډیر مکرم او معزز د الله تعالی په نزد ډیر متقي د تاسې دی .

۸- دا ځکه چې د الله تعالی محبت د هغه په هر وخت او هر ځای کې د یاد ساتلو او بلاخره دین او ایمان ساتلو وسیله ده .

حضرت رسول صلی الله علیه وسلم ابن عباس رضی الله عنه ته داسې نصیحت کړی دی :

د الله دیـــن وســـاته هغـــه بـــه تـــا وســـاتي!
د الله دیـــن وســـاته هغـــه بـــه لـــه تاســـره مـــل وي!
یـــــواځې لـــــه الله نـــــه ســـــوال کـــــوه!
یواځې له الله نه مرسته غواړه!

او پوهه شه ! که ټول انسانان ددې له پاره را یوځای شي چې تاته ګټه ورسوي تاته به له هغه زیاته ګټه ونه رسوي کومه چې الله ستا له پاره لیکلی ده.

او که ټول انسانان ددې له پاره رایوځای شي چې تاته ضرر ورسوي تاته به هیڅ ضرر ونه رسوي یواځې هغه ضرر به درته رسیږي چې الله درته لیکلی دی. قلمونه دریدلي او صحیفې بندې شوې دي.

او په بل روایت کې دا زیاتونه راځي:

په عادي حالاتو کې د الله حقوق وپیژنه هغه به په سختۍ کې درسره مل وي او پوهه شه ! چې الهي مرسته په صبر سره ترلاسه کیږي ،او له غم سره خوشالي مله وي اوله سختۍ سره اسانتیا مله وي(رواه الترمذي بالسناد صحیح ) .

**دوهم – حب رسول الله صلی الله علیه وسلم :**

د رسول صلی الله علیه وسلم محبت پر ټولو مسلمانانو باندې واجب دی ،انس رضی الله عنه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې هغه فرمایلي دي:«لاَ يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ، حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ وَوَلَدِهِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ». [متفق علیه].

ژباړه: یو له تاسو څخه مؤمن او مسلمان کیدې نشي تر څو چه هغه ته زه له اولادونو پلار او ټولو خلکو څخه ډیر محبوب نشم، یعنې د رسول الله صلی الله علیه وسلم محبت دې له ټولو څخه مخکې او زیات وي.

باید دماشوم په زړه کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د محبت د پیداکولو هڅه وکړي او هغه و پوهوي چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم آخرین او قدرمن پیغمبر دی او د هغه د سنتو او لارو څخه پیروي

ډېره ضروري ده او زمونږ لاربښود او زمونږ لپاره د لاربښوونې ښه او غوره نمونه ده .

**پر مونږ باندې د رسول الله صلى الله عليه وسلم حقوق:**

١- د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره محبت کول.

٢- د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ټولو هغو قولي، فعلي او تقريري سنتو چې په قبول شوي سند سره ثابت وي منل يې پر مونږ واجب دي ځکه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سنت د وحی پر بنا دي .لقوله سبحانه وتعالى :[وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَى، إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَى] (النجم ٣-٤).

ژباړه: او خبرې نه کوي (محمد) له هوا (خپلې) نه، نه دی دغه (قرآن) مګر وحی ده چې ورته ليږل شوی ده.

٣- د رسول الله صلى الله عليه وسلم پيروي کول، يعنی د هغه ټول امرونه پر ځان منل او پلي کول، او ټول هغه څه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ورځخه منع فرمايلی ده ځان ورځخه وژغوري.

لقوله سبحانه وتعالى:[وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ](حشر ٧)

ژباړه: او هغه څه چې رسول يې تاسې درکوئ واخلئ او له هغه څه نه چې تاسې منع کوي ډډه وکړئ او له الله څخه ووېرېږئ.

د الله تعالى رضا د رسول الله صلى الله عليه وسلم متابعت او پيروي ده :

[قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللّهُ](ال عمران 31).

ژباړه: ووایه (ای محمده)!: کچیرې تاسې له الله سره محبت لرئ نو زما پیروي وکړئ چې الله له ستاسې سره محبت وکړي.

او فرمایي: [فَلاَ وَرَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُونَ حَتَّىَ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لاَ يَجِدُواْ فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسْلِيمًا] (النسآء ۶۵) :

ژباړه: نو نه! (ای رسوله) ستا په رب قسم دی چې دوی تر هغه پوره مؤمنان نشي کیدای څو پورې چې تا ته په خپلو ټولو شخړو کې حکم (فیصله کوونکی) کړي او بیا ستا د پریکړو په اړه پخپلو ځانونو کې کوم خپګان و نه مومئ او (دغه پریکړه) په ډیرې خوښۍ سره و مني .

**دریم – د قرآنکریم محبت**

تربیه کوونکي باید خپل ماشوم د قرآن د مرتبي او عظمت سره آشنا کړی چې :قرآنکریم د اسلام او اسلامي شریعت لومړی آساسي مصدر دی او قرآنکریم د الله تعالی د جانبه د بشریت د پاره د هدایت یوازنی نسخه ده .

الله تعالی فرمایي :إِنَّ هَـذَا الْقُرْآنَ يِهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا كَبِيرًا (الاسراء ۹ /)

(بې شکه دغه قرآن لار ښيي چې هغه سمه سيخه ده او هغو مؤمنانو ته چې ښه کارونه کوي زیری ورکوي ، چې د دوی د پاره لويه بدله ده ).

**څلورم – د صحابه کرامو او صالح مؤمنانو سره مینه**

د صحابه کرامو په باره کې زمونږ عقیده دا ده چې ټول صحابه کرام عادلان ، متقیان وو . مونږ د ټولو صحابه کرامو احرام کوو او د هغوی سره مینه لرو .

د صحابه کرامو سره مینه د ایمان او دین نښه او د هغوی سره بغض او دوښمني د بې دینی نښه ده ځکه الله تعالی له دوی څخه راضی او خوښ دی .
[ وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ بِإِحْسَانٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَداً ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ] (التوبة:۱۰۰).
ژباړه : او هغه وړاندني اولني له مهاجرینو نه او له انصارو نه او (نور) هغه کسان چې متابعت کړی دی د دوی (سابقانو) په احسان او نیکۍ سره الله له دوی نه راضی دی او راضي شوی دي دوی له الله نه او الله تیار کړي دي دوی ته جنتونه چې بهیږي لاندې د هغه ویالې او دوی به همیشه په هغه کې وي او دا (رضا او نعمت ) بری دی ډیر لوی .
همدارنګه د صالح مؤمن سره مینه لرل پکار دي :
الله سبحانه وتعالی فرمايي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّهَ وَكُونُواْ مَعَ الصَّادِقِينَ (التوبه ۱۱۹).
ژباړه : ای مؤمنان له الله څخه وویریږئ او له صالحانو خلکو سره ملګري شئ.
رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : «المرء مع من احب» (متفق علیه ) .
یعنې : هر سړی به د (قیامت په ورځ ) د هغه چا سره وي چې د چا سره یې مینه وي .

مګر د اسلام د دوښمنانو سره مينه او دوستي نه کوي او د هغوی عقائد به بد ګڼي .

الله سبحانه وتعالی فرمايي: [ لا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ ... ] (مجادله/22).

ژباړه: هيڅکله به دا و نه مومې ، کوم خلک چې پر الله او آخرت ايمان لرونکي دي چې هغوی له هغو خلکو سره مينه کوونکي اوسي چې د الله او د هغه د رسول مخالفت يې کړی دی ، که څه هم د هغوی پلرونه وي يا يې زامن وي او يا يې ورونه وي او يا يې ټبر او کورنۍ وي.

**اولادونو ته په صبر توصيه او هغوی ته د هدايت دعا :**

والدين کرام دې خپلو اولادنو ته په ايمان او نيک عمل باندې د صبر ، ثبات او استقامت توصيه کوې ځکه چې ايمان او عمل صالح د ايمان د نواقصو ، ريا او نفاق له خطراتو سره مخ کيدونکی دی .

حضرت انس رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به دا دعا ډيره لوستله :

[يا مُقَلِّبَ القُلوبِ ثَبِّت قَلبي عَلَى دِينِكَ ] (ترمذی: ۲۱۴۰و احمد ) .

(ای د زړونو بدلونکی خدايه زما زړه ستا په دين ثابت وګرځوه )

**د شرک نه د نجات دعا :**

«اللَّهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ أَنْ أُشْرِكَ بِكَ وَأَنَا أَعْلَمُ، وَأَسْتَغْفِرُكَ لِمَا لاَ أَعْلَمُ» (مسند احمد 4 / 403).

ژباړه: ای الله ! زه پر تا پنا غواړم له دې چې ستا سره څوک شريک ونيسم حال دا چې زه ور باندې پوه وم او له تا څخه بخښنه غواړم (شرک ) چې زه نه ور باندې پوهيږم.

همدارنګه خپل اولادونو او ښځې ته د هدايت دعا کول :

په قدسي حديث شريف کې راغلي دي : ( قال الله تعالى : يا عبادي كلكم ضالٌ إلا من هديته فاستهدوني أهدكم ).

ترجمه : جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : چې الله سبحانه وتعالى فرمايي : ای زما بندګانو ! د تاسې ټول ګمراه دي مګر (هغه څوک له ګمراهۍ څخه نجات ) مومي چې زما څخه هدايت وغواړي، پس زما څخه هدايت وغواړئ چې زه تاسې ته هدايت وکړم .

د ځان او خپل اهل عيال د پاره د هدايت دعا کوئ د اهل عيال د پاره د هدايت دعا ځکه خاص اهميت لري چې که خدای مه کړه هغوی بې لاري شي ستا څخه به يې پوښتنه کيږي ځکه چې ته د هغوی پر وړاندې مسئول يې، او بل دا چې الله سبحانه وتعالى د رښتني مؤمنانو د صفاتو څخه يو همدا صفت بيانوي چې :

هغوی د خپل ځان په اصلاح اکتفا نه کوي بلکي د خپل اهل عیال اصلاح هم له خپل رب څخه غواړي، قال تعالی: وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ( الفرقان :۷۴).

ژباړه : او هغه کسان دي دعاوي کوي : ای زمونږ ربه ! مونږ ته له خپلو میرمنو او اولادونو څخه د سترګو یخیدل راکړه او مونږ د ځان ساتونکو امامان کړه په مصیبتونو باندې صبر کول.

څکه مصیبتونه د آزمښت لپاره وي .

[وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ وَنَقْصٍ مِنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنْفُسِ وَالثَّمَرَاتِ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ ] (البقرة: ۱۵۵).

ژباړه : او خامخا به آزمیو تاسو په ډار ، لوږې د مالونو ځانونو او د میوو په کموالي او صبر کوونکو ته زیری ورکړه .

رسول صلی الله علیه وسلم فرمايلي : « إِنَّ عِظَمَ الْجزاءِ مَعَ عِظَمِ الْبلاء، وإِنَّ اللَّه تعالى إِذَا أَحَبَّ قَوماً ابتلاهُم، فَمنْ رضِيَ فلَهُ الرضَا، ومَنْ سَخِطَ فَلَهُ السُّخْطُ » (رواه الترمذي وقَالَ: حديثٌ حسن).

ژباړه : لوی اجر او بدله له سترو او لویو ابتلاوو سره دی ، او کله چې الله یو قوم خپل دوست ولري هغه امتحانوي نو څوک چې د الله تعالی په امتحان راضي شي الله تعالی د هغه څخه راضي کیږي او که ناراضه شي الله تعالی له هغه څخه ناراضه کیږي .

# شپږم فصل

# عبادتي تربيه

عبادت د اسلامي عقيدې ښکارندوي دی .که څه هم چې ماشومانو ته د بلوغ نه مخکې د عبادت څه مسؤليت نه دی متوجه مګر د بلوغ د دوري نه مخکي بايد ماشومان د دين او شريعت له احکامو سره بلد شي ،او هڅه وشي چې په دي دوره کې هغوی ته په ښو کارونو امر او له بدو کارونو منع شي تر څو د تل لپاره ورسره عادت شي .

**د عبادت تعريف :**

عبادت په لغت کې ، خشوع ، تيتېدل ، غاړه ايښودلو او فرمانبرداري کولو ته وايي .

په اصطلاح کې خاص الله تعالی ته په محبت او تعظيم سره ټيټېدو او عاجزی ته عبادت وايي داسې چې د (اسلامي شريعت) اوامر پر ځای کړي او له منکراتو او منع کړ شويو شيانو څخه پرهيز وکړي .

**د عبادت د صحت شرطونه :**

١- د عبادت لپاره خالصه عقيده او اخلاص شرط دی يعنې خاص د الله تعالی لپاره به وي ، منافقت او ريا به پکې نه وي ، لقوله سبحانه وتعالی :[ وَمَا أُمِرُوا إِلا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاءَ وَيُقِيمُوا الصَّلاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ وَذَلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ] (سورة البينة: الآية ٥) .

ژباړه : او هغوی ته پرته له دې هیڅ امر نه وو شوی چې : عبادت وکړئ د الله داسې چې خالص او سوچه کوونکی وي الله لره ( د شرک او نفاق څخه پاک) په داسې حال کې چې را ګرځېدونکي وي د باطل څخه حق ته او لمونځونه وکړي ، زکاتونه ورکړي او همدا محکم او مسقیم او روغ دین دی .

۲- دا چې په عبادت کې به د رسول الله صلی الله علیه وسلم متابعت وي ځکه چې الله سبحانه وتعالی فرمايي :[ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ] (الحشر: ۷ ) .

ژباړه : او هغه څه چې رسول یې تاسې درکوئ واخلئ او له هغه څه نه چې تاسې منع کوي ډډه وکړئ او لـه الله څخه ووېرېږئ ، یقیناً چې الله تعالی سخت عذاب ورکوونکی دی .

مثلاً : یو کس د سهار فرض لمونځ چې دوه رکعته دی د هغه پر ځای درې رکعته لمونځ کوي ، وايي زه د دو رکعته پر ځای درې رکعته کوم ، نو دا ډول لمونځ یې باطل او د قبول وړ نه دی ځکه د شریعت پر طریقه برابر نه دی د دوو رکعتونو پر ځای درې رکعته ادا کوي حال دا چې شریعت د درېو رکعتونو حکم نه دی ورکړی.

## ماشومانو ته د لمانځه د تربیت مرحلې

**لومړی مرحله :**

اولادونه د خپلو والدینو د اعمالو او اقوالو تقلید کوي ،کله چې مور لمونځ کوي ، پلار په کور کې نفلي لمونځ کوي اولادونه یې تقلید کوي ، په ظاهري بڼه د لمانځه د احکامو سره بلدتیا مومي .

**دوهمه مرحله :** د ماشومانو عادت کول په لمانځه باندې له اوه کلنۍ څخه شروع کیږي د اوه کلنۍعمر په تعلیم او تمرین د عادت کولو عمر دي.

کله چې اولادونه اوه کلنۍ ته ورسیږي هغوی ته به د نجاست څخه د پاکولو ، اودس او د لمانځه د احکامو لکه : فرض ، واجب ، سنت ، د لمانځه د ادا کولو طریقه ور زده کړي او هغوی ته به په همدې سن کې د لمانځه د ادا کولو حکم وکړي .

رسول صلى الله علیه وسلم فرمایلي : «مروا أبناءکم بالصلاة لسبع » (مسند أحمد).

ژباړه: خپلو اولادونو ته مو په اوه کلنۍ کې په لمانځه امر وکړئ.

مګر په دې مرحله کې د لمانځه د ادا کولو په زده کړه کې دقت پکار دی څکه که یو ځل په ناقص لمونځ کولو عادت شي نو بیا یې اصلاح مشکله ده . باید د لمانځه بیروني شرطونو ، داخلي ارکانو او احکامو ته پوره متوجه شي او د لمونځ په ادا کولو کې ټول ارکان په ښه شان زده کړي لکه : قیام ، رکوع ، سجده ، قعده او په ټولو ارکانو کې اطمنان خشوع او خضوع کول .

**دریمه مرحله :**

کله چې اولادونه لس کلنۍ ته ورسیږي هغوی به د لمانځه پوره پابندې کوي کچیرې په لمانځه کې سستي او غفلت کوي نو اسلامي شریعت د تأدیب حکم کړی دی دا ځکه چې لمونځ په دین کې زیات اهمیت لري ، د لمانځه ترک د دنیا او آخرت تباهي ده .

نو والدین به هغوی ته د غفلت په صورت کې بدني تأدیب ورکوي په دې نیت چې اصلاح او د لمانځه اهمیت ته متوجه شي ، داسې وهل چې نیت یې یوازې تأدیب وي ظالمانه او سخت نه وي .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي «مروا أبناءكم بالصلاة لسبع واضربوهم عليها لعشر وفرقوا بينهم في المضاجع» (مسند احمد).

ژباړه: خپلو اولادونو ته مو په اوه کلنۍ کې په لمانځه امر وکړئ، په لس کلنۍ د لمانځه (نه کولو په وجه) هغوی ووهئ او د هغوی خوب ځایونه جلا کړئ).

د ماشوم سرپرست باید د ماشوم د لمانځه او نورو مسؤلیتونو د ادا کولو لازمه څارنه وکړي او په هیڅ ډول د هغه په روزنه او څارنه کې تنبلي و نه کړي ځکه الله جل جلاله فرمایي :[وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا نَّحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوَىٰ (طه /۱۳۲).

ژباړه: خپلي کورنۍ ته مو په لمانځه کولو امر وکړه ! او ته پخپله هم په هغه کلک اوسه .مونږ له تا نه د روزي پوښتنه نه کوو (بلکي) مونږ تا ته روزي در کوو او ښه پایله د تقوا لرونکو ده .

**څلورمه مرحله :**

ماشومان له ځانه سره جومات بوتلل:

د دین کمال د لمانځه کمال دی او د لمانځه کمال او پوره والی په جماعت سره د لمانځه ادا کول دي ، ماشوم ته د جماعت د لمانځه فضیلت او ګټې بیانول چې ځینې په لاندې ډول دي :

**د جماعت د لمانځه دیني او دنیوي فائدې :**

١- په تیاره کې جوماتونو ته تلونکو لپاره به د قیامت په ورځ نور وي .

رسول الله صلى الله علیه وسلم فرمایلي:«بشّر المشائین في الظلم إلى المساجد بالنور التامّ یوم القیامة» (ابؤداود ، ابن ماجه ).

ژباړه : هغو کسانو ته چه په تیاره کې جوماتونو ته ځي زیری ورکړئ په کامل نور سره په ورځ د قیامت (دغه جومات ته تګ به په ورځ د قیامت هغوی ته نور وګرځي).

٢- د سهار او بیګا د جماعت لمونځ ادا کول د ټولې شپې د نفلي عبادت برابر ثواب لري .

له عثمان بن عفان (رضی الله عنه ) نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایل :«من صلّى العشاء في جماعة فكأنّما قام نصف اللیل، ومن صلّى الصبح في جماعة فكأنّما صلّى اللیل كلّه» (مسلم ۶۵۶ )

ژباړه : څوک چه د نماسختن لمونځ په جَمع ادا کړي داسې دی لکه تر نمې شپې یې چه لمونځونه کړي وي اوڅوک چې د سهار لمونځ په جَمع ادا کړي

داسې دی لکه ټوله شپه يې چې په لمونځ کولو سبا کړي وي ( د بيګا او سبا لمونځ په جمع ادا کولو ثواب د ټولې شپې له نفلي عبادت سره مساوي دی ).

٣- کچېرې خلک د جماعت په فضيلت پوه شي نو حتماً به ځي جومات ته که څه هم په خاپوړو سره وي .

او أبوهريره (رضی الله عنه) روايت کوي چه رسول الله (صلی الله عليه وسلم) فرمايلي :«لو يعلمون ما في العتمة والصبح لأتوهما ولو حبواً» (متفق علِيه ).

ژباړه : که خلک پوهيدلی چې د بيګا او سبا په لمونځ کولو کې څومره ثواب دی دوی به جومات تللی اګر که په خاپوړو هم وای.

۴- د جوماتونو ته تلونکي کسان به د قيامت په ورځ د عرش تر سيورې لاندې وي .

د بخاري شريف په يوه حديث شريف کې راغلی : اوه کسان به د قيامت په ورځ د عرش تر سيورې لاندې وي د هغه ډلې يو هم هغه کس دی چې زړه يې له جومات سره تړلی وي «وَرَجُلٌ قَلبُه مُعَلّقٌ بِاالمَسَاجِدِ » (بخاری او مسلم ).

۵- څوک چې څلويښت ورځې تکبير اولی ونيسي هغه ته به د دوزخ او نفاق څخه نجات وي .

عن أَنَسِ بنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :«مَنْ صَلَّى للهِ أَربَعينَ يَوماً فِي جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبيرَةَ الأُوَّلَى كُتِبَ لَهُ بَرَاءَتَانِ: بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ، وَبَرَاءَةٌ مِنَ النِّفَاقِ» ( الترمذي).

ژباړه : چا چې څلويښت ورځې په اخلاص داسې لمونځ وکړ چې تکبير أُولی ترې

فوت نه شي هغه ته به دوه برائت (خلاصون یا نجات ) ورکړ شي یو د دوزخ څخه او بل د نفاق څخه.

۶- د جماعت لمونځ د یوازې لمانځه څخه پنځه ویشت درجې فضیلت لري .

«صَلاةُ الْجَمِيعِ تَزِيدُ عَلَى صَلاتِهِ فِي بَيْتِهِ وَصَلاتِهِ فِي سُوقِهِ خَمْسًا وَعِشْرِينَ دَرَجَةً» (بخاری ۲۹۵ ).

۷- جومات ته تلل د نورو مسلمانانو سره د ارتباط او محبت وسیله ده .

۸- د اخوت او اسلامي ورورولی قوت ، ماشوم ته د بل هر چا څخه د جومات ملګری خوږ او ګران وي .

۹- جومات د الله تعالی کور دی او په جومات کې اوسېدل د الله تعالی مېلمستیا ده ، نو انسان د زړه د پاره دا تر بل هر ځای څخه ښه د مراقبت ځای دی .

۱۰- ماشوم په جومات کې د لمانځه او صفونو ترتیب او تنظیم زده کوي ، چې د زړونو د وحدت او یوالې سبب ګرځي .

۱۱- ماشوم د جماعت په ادا کولو کې د ټول ژوند ترتیب او تنظیم زده کوي ځکه ماشوم چې کله د لمانځه په وخت او جماعت عادت شو ټول کارونه به یې همداسې منظم وي .

۱۲- په جومات کې وعظ زده کوي او د وعظ او ارشاد آداب زده کوي .

**د رمضان روژه او ماشومان :**

په نابالغ ماشوم او ماشومه باندې د رمضان روژه فرض نه ده .

په دلیل د دغه حدیث شریف:" رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلاثَةٍ : عَنِ الْمَجْنُونِ الْمَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ حَتَّى يُفِيقَ ، وَعَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ ، وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَحْتَلِمَ " (ابوداود و حاکم ).

ژباړه : پورته شوی قلم له دریو کسانو ( شرعي مسئولیت نلري ) : له بې حاله لیوني څو پورې چې په حال کې نشي ، بیده کس څو پورې چې ویښ شوی نه وي ، او هلک څو پورې چې بالغ شوی نه وي .

مګر هغوی ته په روژې نیولو باندې أمر کول ښه کار دی تر څو دوی د روژې نیولو سره عادت شي ځکه چې دا کار د صحابه کرامو څخه روایت شوی دی ، هغه وخت چې دوی د روژې نیولو د قوت او طاقت سن ته ورسیږي ، د روژې نیولو توان ولري مګر که هغوی ته د روژې نیول ضرر لري منع کول یې پکار دي .

**زکات ،صدقه او ماشوکان** : په نا بالغ ماشومانو باندې زکات فرض نه دی ، مګر والدینو ته ښایي چې هغوی د زکات د اهمیت څخه خبر کړي ، زکات د اسلام دریم رکن دی ، د زکات نه ادا کوونکو ته د سختو وعیدونو خبرداری ورکړ شوی دی ، د اسلام لومړي خلیفه ابوبکر صدیق رضی الله عنه د زکات د نه ورکوونکو پر وړاندې جهاد کړی دی .

والدینو ته پکار ده چې کله د خپلو اولادونو په لاس باندې بې وسه کسانو ته څه ورکړي تر څو ماشومان د انفاق في سبیل الله سره بلد شي .

صدقه او انفاق لوی اجر لري او په مال کې د زیاتوالی او برکت سبب ګرځي .

د قیامت په ورځ به د الله تعالی د رحمت تر سیورې لاندې یو هغه کس وي چې داسې پټه صدقه کوي چې کیڼ لاس یې نه وي خبر چې په ښي لاس څه انفاق شوی دی ، «وَرَجُلٌ تَصَدَّقَ، أَخْفَى حَتَّى لا تَعْلَمَ شِمَالُهُ مَا تُنْفِقُ يَمِينُهُ» (البخاري :۶۶۰ ) .

جناب نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي :«مَا مِنْ يَوْمٍ يُصْبِحُ الْعِبَادُ فِيهِ، إِلاَّ مَلَكَانِ يَنْزِلاَنِ، فَيَقُولُ أَحَدُهُمَا: اللَّهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا، وَيَقُولُ الآخَرُ: اللَّهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا». (بخاری :۱۴۴۲)

یعنې : هر ورځ دوې ملائکې ځمکې ته را کوزیږي . یوه یې وایي : ای الله (جل جلا له) ! ځوک چې ستا په لار کې انفاق کوي هغې ته بدله ورکړي ، او بله یې وایي : ای الله (جل جلا له) ! ځوک چې ستا په لار کې انفاق (خرچ ) نه کوي د هغه مال هلاک کړه ، یعنې د هغې مال تلف کړې.

**حج او ماشومان :**

په نابالغ ماشوم او ماشومه باندې حج فرض نه دی ، په دلیل د دغه حدیث شریف :

" رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلاثَةٍ : عَنِ الْمَجْنُونِ الْمَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ حَتَّى يُفِيقَ ، وَعَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ ، وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَحْتَلِمَ " (ابوداود و حاکم ).

ژباړه : پورته شوی قلم له درېو کسانو ( شرعي مسئولیت نلري ) : له بې حاله لیوني څو پورې چې په حال کې نشي ، بیده کس څو پورې چې ویښ شوی نه وي ، او هلک څو پورې چې بالغ شوی نه وي .

مګر که ماشوم حج وکړي حج يې صحي کيږي نفلي حج ګرځي او کله چې بالغ شي حج ورباندې فرض کيږي .

ابن عباس رضى الله عنه روايت کوي چې رسول صلى الله عليه وسلم فرمايلي :[إِذَا حَجَّ الصَّبِيُّ فَهِيَ لَهُ حَجَّةٌ حَتَّى يَعْقِلَ ، وَإِذَا عَقَلَ فَعَلَيْهِ حَجَّةٌ أُخْرَى] (رواه حاکم و صصحه الذهبي).

ژباړه : کله چې (نا بالغ) هلک حج وکړي نو هغه د ده لپاره حج دی څو چې د عقل خاوند شي (تر بلوغ پورې ) ، او کله چې بالغ شي نو په هغه باندې بل حج دی .

**دعوت الی الله ،جهاد او ماشومان :**

والدين ته ښايي چې د خپلو ماشومانو په زړه کې د دعوت الی الله او اعلی کلمة الله لپاره د جهاد مينه او اهميت ځای کړي ځکه چې جهاد د اسلام لوړه څوکه ده.

رَأْسُ الأَمْرِ الإِسْلاَمُ، وَعَمُودُهُ الصَّلاَةُ، وَذِرْوَةُ سَنَامِه الْجِهَادُ (الترمذي ، حسن صحيح ) .

ژباړه: د ټولو کارونو سر اسلام دی ، او ستنه يې لمونځ دی او لوړه څوکه يې جهاد دی.

جهاد د اسلام د لوړوالی او د مسلمانانو د عزت او آبرو ساتنې او د کفر او طاغوت د نسکورولو يوازنې وسيله ده ، د ظلم او فساد په مقابل کې د عدل د قيام مسلحانه قيام دی .

او دعوت الی الله او أمر بالمعروف او نهی عن المنکر (په نیکو کارونو امر او له بدو کارونو منع کول ) ددې امت اصلي دنده او مسئولیت دی .

# اوم فصل

## اخلاقي او ادبي روزنه

**د اخلاقو تعریف :**

اخلاق د خُلق جمع ده او خلق خوی او عادت ته وایي .

په اصطلاح کې اخلاق د هغو صفاتو او عاداتو مجموعه ده چې د هغه په نتجه کې داسې کارونه او خبرې ورڅخه صادریږي چې شرعاً او عقلاً غوره او ښه وي .

حسن بصري رحمه الله اخلاق داسې بیان کړي دي : اخلاق د الله او د هغه د مخلوق سره د ښه سلوک کولو څخه عبارت دي :

د الله سبحانه وتعالی سره حسن خلق دري ارکان لري :

1- د الله تعالی د اخبارو تصدیق کول .

2- د هغه د احکامو تنفیذ او تطبیق .

3- د هغه په ابتلاء باندې صبر او خوښي اختیارول .

او د مخلوق سره حسن خلق کول دری ارکان لري :

1- خلکو ته ضرر نه رسول.

2- عفوه او بخشش.

3- پراخه تندی د بل کس د مخامخ کیدو په وخت کې خوشحاله څهره .

امام غزالي رحمه الله اخلاق داسې تعریفوي :
ښه اخلاق څلور ارکان لري کله چې دغه څلور ارکان سم او متناسب شي نو حسن خلق مینځته راځي .
دغه ارکان دا دي : د علم قوه ، د غضب قوه ، د شهوت قوه او د عدل قوه .
هر چې د علم قوه ده ددې په وسیله د ښو او بدو تر مینځ د فرق ادراک کیږي لکه : په اقوالو کې د فرق ادراک په مابین د رښتیا او دروا‌غو کې ، د عقائدو په حصه کې فرق په مابین د حق او باطل کې ، فرق په مابین د ښو او بدو خبرو کې نو کله چې دغه قوه اصلاح شوه ثمره یې حکمت دی او حکمت د ښو اخلاقو رأس بلل کیږي .
او د غضب قوه بیا د حکمت په قبضه کې راځي او د شهوت قوه بیا د عقل او شرع په قبضه کې وي او د عدل قوه په شهوت او غضب کې پوښل شوی وي چې د عقل او شرع په اشاره عمل کوي .
پس عقل په مثال د معلم دی او د عدل قوه په مثال د تلې ده چې د ښو او بدو تر مینځ فرق کوي او غضب بیا مأمور دی په اشارې سره ، پس په هر چا کې چې دا خصلتونه پیدا شول د هغه څخه ښه اخلاق صادریږي. (إحیاء علوم الدین/ للغزالي )

**د ښو اخلاقو فضائل :**

١- ښه اخلاق د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم صفت دی او د صدقینو غوره عمل بلل کیږي ، او ښه اخلاق د دین ثمره او مجاهده بلل

کيـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــږي .
رسـول الله صلى الله عليـه وسـلم فرمـايي :إِنَّمَـا بُعِـثْـتُ لِأُتَمِّـمَ مَكَـارِمَ الأَخـلَاقِ ( رواه البخاري في الأدب المفرد-۲۷۳).
ژباړه: يقيناً چې زه د اخلاقو د تکميل د پاره استول شوی يم .
۲- ابی هريرة رضی الله عنه وايي: لـه رسـول صلى الله عليـه وسـلم نه پوښـتنه وشـوه چې جنـت تـه بـه کـوم خلـک زيـات داخليږي ؟ ويې فـرمايل :«تَقْـوَى اللَّهِ وَحُسْنُ الْخُلُقِ » ( رواه الترمذي / ۲۰۰۴).
ژباړه: د الله نه ويرېدونکي او د ښو اخلاقو څښتنان.
۳- همدارنګـه جنـاب رسـول الله صـلى الله عليـه وسـلم فـرمـايلي :«اِنَّ المُـؤمِنَ لَيُدرِكُ بِحُسنِ خُلُقِه دَرَجَةَ الصَّآءِمِ القَآئمِ» (ابوداود)
ژباړه: مومن بنده د خپلو ښواخلاقو په ذريعه د (نفلي ) روژه نيونکي ،عبادت کونکی درجه حاصلولی شي .
۴- همدارنګه فرمايي : مَامِن شَيءٍ اَثقَلُ فِي مِيزَاَنِ العَبد المُؤمِنِ يَومَ القَيامَةِ مِن حُسنِ الخُلُقِ وَاِنَّ اللّهَ يُبغِضُ الفَاحِشَ البَذِى (ترمذی).
ژبـاړه: د قيامـت پـه ورځ بـه د مـؤمن بنـده د پـاره بـل هـيڅ يوعمـل پرتـه لـه ښـواخلاقو نـه زيـات وزمين نـه وي ، الله تعـالی بيهـوده خبرې کـونکی او بی حياء خبرې کونکي بد ګڼي .

**د بد اخلاقی علاج څه دی ؟**

څرنګه چې اخلاق د دنیا او آخرت د فلاح او کامیابۍ وسیله ده نو چا ته چې الله (جل جلا له) دغه ستر نعمت ورکړي وي ښه او که نه وي هغه دې د خپل ځان عیبونو ته متوجه شي او د هغه د علاج او اصلاح کوښښ دې وکړي .

ځکه الله سبحانه وتعالی فرمايلي دي :[ قَدْ أَفْلَحَ مَنْ زَكَّاهَا] ( الشمس/9 )

ژباړه: بې شکه هغه څوک بریالی شو چې نفس یې پاک کړ (ځان یې اصلاح کړ ) .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :« العلم بالتعلم والحلم بالتحلم ومن يتحر الخير يعطه ...»

ژباړه:علم په تعلم سره زیاتیږي ، نرم خويي په بردبارۍ او حوصیلې سره ، څوک چې د خیر په کوښښ کې وي ( الله به ته ) خير ورکړي .

او همدارنګه د ښو اخلاقو دعا کول رسول الله صلی الله علیه وسلم به داسې دعا کوله :«اللَّهُمَّ حَسَّنتَ خَلْقِي فَحَسِّن خُلُقِي » (رواه ابن حبان في صحيحه -٢٣٩/٣)

**اخلاق د کومو صفاتو او آدابو مجموعه ده ؟**

مخکې مو وويل چې اخلاق د ښو صفاتو لکه : صدق او رښتيا ، په وعده باندې وفاء ، نورو ته ضرر نه رسول او حیاء او همدارنګه ښو آدابو څخه عبارت دی .

**۱- صدق او په وعده باندې وفاء کول :**

صدق او رښتیا د مسلمان د سر تاج دی، مسلمان بنده باید پخپلو ټولو خبرو کې رښتیا ویونکی وي،صدق او رښتینولي د هر مسلمان جوهر دی او د جنت لاره ده ، ماشوم باید د ماشومتوب څخه په دغه جوهر ښایسته او عادت کړ شي .

رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«إن الصدق يهدي إلى البر وإن البر يهدي إلى الجنة وإن الرجل ليصدق حتى يكتب عند الله صديقاً وإن الكذب يهدي إلى الفجور وإن الفجور يهدي إلى النار وإن والرجل ليكذب حتى يكتب عند الله كذاباً» (رواه البخاري والمسلم).

ژباړه: (یقیناً صداقت بنده د نیکۍ طرف ته بیایي او نیکي بنده د جنت طرف ته بیایي تر دې پورې چې رښتیا ویونکی سړی د الله په نزد صدیق ولیکل شي، او یقیناً چې درواغ سړی د بدو کارونو طرف ته بیایي او بد کارونه سړی د اور طرف ته بیایي تر دې پورې چې درواغ ویونکی سړی د الله په نزد درواجن ولیکل شي).

او پر وعده باندې وفاء کول د مسلمان ستر صفت دی او وفاء نه کول د منافق صفت دی .

[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ] (المائده). ژباړه: (ای مؤمنانو پر خپلو وعدو وفا کوئ).

په وعده وفا کول د مسلمان ستر صفت دی

[وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ] (المومنون ۸). ژباړه: (او هغه کسان (کامیاب شول) چې دوی د امانتونو او وعدو رعایت کوونکي دي).

د وعدې مخالفت کول د منافقت نښه ده، په حدیث شریف راغلي دي: عن أبي هريرة، عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: «آية المنافق ثلاث: إذا حدث كذب، وإذا وعد أخلف، وإذا اؤتمن خان» (البخاري).

ژباړه: (له ابوهریرة نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: د منافق درې نښې دي: چې کله خبرې کوي دروغ وایي، کله چې وعده وکړي په هغه وفا نه کوي او که امانت ور ته ورسپارل شي په هغه کې خیانت کوي).

**۲- تواضع:**

تواضح د مسلمان د ښو اخلاقو څخه یو مهم صفت دی ، والدین ته پکار ده چې خپل بچیان د تواضح په صفت سره عادت کړي .

نبی صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«ومن تواضع لله رفعه الله» (شرح مسلم ۱۶/۱۴۱).

ژباړه: چا چې د الله د پاره تواضع وکړه الله تعالی به یې اوچت کړي .

پوهان وایي: کبر هغه زینه ده چې له آخري پوړ څخه سړی پر ځمکه غورځوي

**۳- صبر:**

صبر د دین او دنیا د کامیابۍ وسیله ده ، د انسان په ژوند کې لوړې ژورې حتمي دي چې دا هر څه د الله تعالی له لورې پر بنده ګانو باندې امتحان دی .

**د صبر مراتب :**

۱- په طاعاتو باندې صبر کول .

الله سبحانه وتعالی فرمايي: [رَبُّ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهِ هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ] (مريم: ۶۵).

ژباړه: د آسمانونو او ځمکې او هغو ټولو شيانو رب دی چې د دواړو په مينځ کې دي ، نو يوازې د هغه عبادت کوه او صبر کوه په عبادت د دغه (الله) کې ، آيا پيژنې ته ده ته کوم هم نام ؟ (بلکه نه يې لري.(

۲ -په ګناهونو باندې صبر کول ، نفس اماره هميشه انسان د بدو کارونو وسواس وراچوي نو مسلمان ته پکار ده چې د خواهشاتو څخه په پوره صبر سره پرهيز وکړي ځکه چې د شهواتو لاره د دوذخ لاره ده ، رسول صلی الله عليه وسلم فرمايلي :«وحفت النار بالشهوات» ( او دوزخ په شهوتونو پوښل شوی دی ).

۳ - د حق توصيه او د حق بيان او په نيکو کارونو امر کول او له بدو کارونو څخه منع کول له مشکلاتو سره تړلي دي نو په دې مشکلاتو باندې صبر کول

پکار دي ځکه چې دا لوی کار دی ، د پيغمبرانو عليه السلام لاره ده سترې حوصلې او استقامت ته ضرورت لري.

۴ - د الله تعالى په تقديراتو باندې راضي کيدل ، په مشکلاتو او مصيبوتو باندې صبر کول ځکه چې دا امتحان دی.

[ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ وَنَقْصٍ مِنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنْفُسِ وَالثَّمَرَاتِ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ * الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُمْ مُصِيبَةٌ قَالُوا إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ] (البقرة: ۱۵۵، ۱۵۶).

ژباړه : (او خامخا به آزميو تاسو په ډار ، لوږې د مالونو ځانونو او د ميوو په کموالي او صبر کوونکو ته زيرى ورکړه . هغه کسان چې کله کوم غم او مصيبت ور ورسيږي وايي چې : مونږ ټول د الله يو او مونږ ټول به هغه ته بيا ور ګرځو ).

د صبر کوونکو لپاره بې حسابه اجر دی ، لقوله سبحانه وتعالى :[إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ] (الزمر :۱۰)

ژباړه: په تحقيق سره د صبر کوونکو اجر به بې حسابه ورکول کيږي.

**۴- مهرباني او نرمي :**

والدين ته پکار ده چې د خپلو اولادونو سره مهربانه او نرمه رويه او سلوک وکړي ځکه د هغوى زړونه کمزوري دي د سختى توان نلري او خپلو اولادونو ته به په دغه حميده صفت توصيه کوي. والدين د خپلو اولادنو

تقليد کوي کچېرې والدين نرم خويه وي نو اولادونه يې هم په نرم خويي عادت کيږي .

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:«مَن يُحرِمُ الرِّفقَ يُحرَمِ الخَيرَ كُلَّه» (رواه مسلم ) .

ژباړه: چا کښې چه نرم خويي نه وه هغه د هر قسمه خير او نيکی نه محروم او بې برخې دی .

**٥- عدل او مساوات :**

د الله تعالی د جانبه د ټولو پيغمبرانو او آسماني کتابونو د نزول يو هدف په ځمکه کې د حق او عدل قايمول وو :

لقوله تعالی: [لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ] ( الحديد ٢٥) ژباړه: (يقيناً چې مونږ خپل پيغمبران له خپلو روښانه او څرګندو هداياتو سره وليږل او له هغوی سره مو کتاب او تله نازل کړی ؤ تر څو پرخلکو کې عدل قايم شي) .

والدينو ته ښايي چې په سلوک، سوغات ورکولو ، ناز ورکولو کې د خپلو اولادونو تر مينځ د عدل قيام وکړي .

نعمان بن بشير رضي الله عنهما وايي پلار مې ماته يو شي هديه کړل ، عمرة بنت رواحه (مور مې) وويل ترهغه به راضی نه شم ترڅو چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ورباندې شاهد شوی نه وي ، پس پلار مې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ورغی ورته ويې ويل زوی مې چې له رواحه نه دی يو شی مې

ورته هدیه (سوغات ) کړل مګر مور يې دا تأقيد کړی چې رسول الله به شاهد نيسې..

رسو ل الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ایا تا ټولو زامنو ته همدا ډول هدیه ورکړې ده هغی وویل نه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: له خدای (جل جلاله) څخه وویریږه او د زامنو تر منځ عدالت سره رفتار وکړه ورسته مې پلار وګرځيد او هدیه يې واپس واخیسته (صحیح البخاري) ..

نو ثابته شوه چې د اولاد تر مینځ په سوغات ورکولو ، پاللو او سلوک کې باید فرق ونشي

د عدل قیام عبادت دی چې ستر فضیلت لري او بې عدالتي ظلم دی چې په قیامت کې د تیارو سبب ګرځي .

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي :«إِنَّ المُقسِطِينَ عِنْدَ اللَّهِ عَلى مَنابِرَ مِنْ نور: الَّذِينَ يعْدِلُونَ في حُكْمِهِمْ وأَهلِيهِمْ وما وُلُّوا » (رواهُ مسلم).

ژباړه: (مقسطین (عادل خلک ) به د الله تعالی په نزد د نور پر منبرونو قرار لري، هغه کسان چې ( په ور سپارل شوي ) حکم او مسئولیت کې او د خپل اهل او ولایت کې د عدالت رعایت کوي) .

**۶- حلم او حوصله او له غصې څخه پرهیز:**

بې ځایه او ډیر قهر او غصه کېدل ځینې وخت د سخت خطر سبب ګرځي لکه: دوښمني، عداوت او حتی د خولې څخه د کفر د الفاظو د وتلو سبب

ګرځي . د قهر او عصبي څخه پرهيز او د هغه کابو کول د متقيانو صفت دی، د دنيا او آخرت خير دی.

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [الَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي السَّرَّاء وَالضَّرَّاء وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ] (آل عمران 134). ژباړه: (پرهيزکاران هغه کسان دي چې په خوښۍ او نا خوښۍ دواړو حالاتو کې مالونه خيراتوي، قهر زغمونکي او خلکو ته عفوه کوونکي وي او الله پاک نيکي کوونکي خوښوي).

جناب رسول صلى الله عليه وسلم ته يو کس راغی چې ما ته نصيحت وکړه، جناب دری ځله هغه ته په تينګار سره وويل چې :« لاَ تَغْضَبْ» (غصه مه کوه ) .

همدارنګه فرمايي: :«لا تغضب ولك الجنة »(رواه صحيح الجامع و الطبراني).

ژباړه: (غصه مه کوه تا لره به جنت وي) .

د والدين د پاره د حلم او غصې کولو څخه پرهيز کول پر دوی باندې د رحمت د نزول سبب ګرځي اولادونو ته يې نقش قدم ګرځي.

**حياء :** او حيا د بدو او فاحشو کارونو مخنيوی کوي او سړی د خير طرف ته بيايي .

لکه څنګه چې ايمان سړي نيکو کارونو ته جلبوي او له بدو کارونو څخه يې منع کوي همداسې حياء هم ده ځکه د ايمان يوه برخه ده .

«إِذَا لَمْ تَسْتَحِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ»(البخاري).

ژباړه: هر کله چې شرم او حیا ونه لرې څه دې چې غوښتل هغه وکړه .

قول د « فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ » صیغه د امر ده چې د تهدید او وعید لپاره ده نه د امر لپاره

**د رازساتل :**

والدین باید خپلو اولادونو ته د راز ساتلو اهیمت وښایي چې د کور راز به هیڅا ته نه وایي . او د کور ، پلار او مور راز به ساتي .

د راز ساتل له اسلامي اخلاقو څخه دی جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه په اړه صحابه کرامو ته تعلیم ورکولو . انس بن مالک رضی الله عنه وایي : أَسَرَّ إِلَيَّ نبِيُّ الله صَلى اللهُ عليهِ وسلَّمَ سرّاً فمَا أخبرتُ بهِ أحَداً بعدُ.

ژباړه :ماته به چې جناب نبی صلی الله علیه وسلم کومه پټه د راز خبره وکړه نو بیا به مې هغه هیڅ چا ته نه کوله .

**اسلامي حجاب**

کله چې ښځه بلوغ ته ورسیږي حجاب وربانديې فرض دی ، مګر د بلوغ څخه مخکې حجاب کول مستحب او د فتنې څخه امن دی ، والدین به خپلې لور ته د حجاب په اغوستلو امر کوي تر څو وربانديې عادت شي چې علماؤ دغه سن د لمانځه په قیاس سره لس کاله ښودلی دی او د بې بې عایشې رضی الله عنها قول دا دی چې کله نجلی ۹ کلنه شوه حجاب به اغوندې.

جاء في اللجنة الدائمة: إذا بلغت البنت : وجب عليها أن تلبس ما يستر عورتها ، ومنها : الوجه ، والرأس ، والكفان ، سواء كانت تلميذة أم لا ، وعلى ولي أمرها أن يلزمها بذلك لو كرهت ، وينبغي له أن يمرنها على ذلك قبل البلوغ حتى تتعوده ، ويكون من السهل عليها الامتثال.
"فتاوى اللجنة الدائمة " ( ١٧ / ٢١٩ , ٢٢٠ ).

**د بلوغ علایم په لاندې ډول دي :**

١ -د نارینه او ښځینه د پاره احتلام کیدل ( په شهوت سره انزال ).

٢ -د شرمګا د ویښانو شنه کیدل

٣ -په ښځو کې د حیض ښکاره کیدل.

**د بلوغ سن :**

د بلوغ په سن کې د فقهاؤ کرامو تر مینځ اختلاف نظر دی.

صاحبینو (امام یوسف او امام محمد) ، امام شافعی او امام احمد په نزد د بلوغ سن پنځلس کاله دی او امام ابو حنیفه په نزد ١٢ کاله دی ( موسوعة الفقهیة ) .

اسلامي حجاب عبارت دی د نامحرمو څخه د ټول بدن پټول:

الله سبحانه وتعالی فرمایي:

[يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاء الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ذَلِكَ أَدْنَى أَن يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا] (الاحزاب ٥٩).

ژباړه: ای پیغمبره! ووایه ته خپلو ښځو، لوڼو، او د مؤمنانو ښځو ته چې خپل پړونې یا لوی څادرونه پر ځانو خواره کړي دا ډیره غوره کړنلاره ده تر څو و پیژندل شي نو نه به ربړول کیږي (د بدکاره او فاسقو خلکو له ضرر او اذیت رسولو به په امن وي) او الله ښه بخښونکی مهربان دی.

تفسیر ابن کثیر د دغه آیت شریف په تفسیر کې د رئیس المفسرین ابن عباس رضی الله عنه قول نقلوي لیکي:

عن ابن عباس: أمر الله نساء المؤمنين إذا خرجن من بيوتهن في حاجة أن يغطين وجوههن من فوق رؤوسهن بالجلابيب، ويبدين عينًا واحدة.

یعنې : الله تعالی مؤمنو ښځو ته دا فرمان وکړ چې: کله د ضرورت په وخت کې د کور څخه د باندې وځی نو خپل مخ د پاسه د سر په ټکري پټ کړئ او فقط یو سترګه ښکاره کړئ.

**د پیغلې مسئولیت د خپل پلارپه کور کې :**

۱ - **مسلمانه پیغله** به د الله سبحانه وتعالی په عبادت او اطاعت کې ژوند کوي ، پنځه وخته لمونځ به پخپل وخت سره له ټولو حقوقو ، روژه نیول ، د زیوراتو زکات ورکول ( کچیرې مالکه نصاب وي ) او د اسلامي شریعت ټول اوامر به پر ځای کوي او د شریعت له منع کړ شویو شیانو څخه به ځان ساتي.

۲ - **د الله تعالی د اطاعت وروسته** به د خپل مور او پلار سره ښه سلوک کوي ، لقوله سبحانه وتعالی:

وَقَضَى رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا )...الإسراء/23، 24.(
ژباړه : ستا رب حکم کړی دی چې لـه هغـه پرتـه (د بل هیچا او هیڅ شي ) عبادت مه کوئ او له مور او پلار سره ښه وکړئ.

**۳ - شرعي علم به حاصلوي :**

د شریعت ضروري علم چې عبارت لـه عقائدو ، د احکامو پیژندلو او نورو څخه دی په نارینه او ښځه فرض دی ، د مسلمانې بی بی لپاره د شرعي علم د حاصلولو مهم چانس او مهم وخت د پلار کور دی ، ځکه والدین تر هر چا پر خپل اولاد سوزي او د خپل اولاد د خیر تمه او توقع لري او بل په دغه وخت کې ښځه ته د اولاد مسئولیت نه وي متوجه نو کولای شي په ښه شان سره شرعي علم حاصل کړي.

**۴- د عفت او حیا ساتنه :**

مسلمانې بی بی ته ټول عمر اسلامي شریعت حکم کړئ دی چې د خپل حیا او عفت ساتنه وکړي ، خو د پیغلتوب دوره د حیا او عفت امانتي دوره ده.
د حجاب کلک ساتل ، د خپلوانو ( د کا کا زوی ، ماما زوی ، عمه زوی ، خاله زوی ) له اختلاط او کډون او ملګرۍ څخه په کلکه ډډه کول ، د بیګانه خلکو نه د بدن د پټولو خبرو او کتلو حجاب کول ، د مخلطو او ګډو مکتبونو ، پوهنتونو او دفترونو څخه په کلکه ډډه کول چې بیګانه خلکو سره اختلاط عظیم فساد دی

.

**د اولادونو د نکاح انتظام :**

په والدينو باندې د اولاد له حقوقو څخه يو حق دا دی چې هغوی په واده کړي .

کوم هلك يا نجلی چې بلوغ ته ورسيږي ، توان او وس ولري او پلار يي نکاح ورته ونه کړي او دغه هلك او نجلي خداي مه کړه کومه ګناه وکړي په دغه ګناه کي پلارهم ورسره شريك ده ځکه په دي باره کي رسول کريم صلي الله عليه وسلم فرمائلي دي چه کوچني هلك ته اول کي بايد ښه نوم ورته کيږدي او بيا چه کله بلوغ ته ورسيږي نو بايد نکاح ورته وکړي او که هلك بالغ شو او پلار يي واده ورته ونکړي او دغه هلك ګناه وکړي نو په دغه ګنا ه کي پلار هم ورسره شريك ده.

وفي المشكاة المصابيح: عن ابي سعيد و ابن عباس رضي الله عنهما قالا قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :«من ولد له ولدفليحسن اسمه وادبه فاذابلغ فليزوجه فان بلغ ولم يزوجه فاصاب اثما فانما اثمه على ابيه »

قال في المرقاة :و هومحمول على الزجر والتهديد للمبالغة والتائيد قال الطيبي جزاء الاثم عليه حقيقة و دل هذا الحصر على ان لااثم على الولد مبالغة لانه لم يتسبب لما يستفاد ی ولده من اصابة الاثم (مرقاة ۶ج۷۴ص)

مګر کوم کسان چې د نکاح اسباب او توان نه لري اسلامي شريعت هغوی ته د صبر توصيه کوي چې د خپل عفت او عزت ساتنه به کوي

الله جل جلا له فرمايي : وَلْيَسْتَعْفِفْ الَّذِينَ لا يَجِدُونَ نِكَاحًا حَتَّى يُغْنِيَهُمْ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ ( النور 33).

ژباړه : او څوک چې د نكاح (اسباب ) و نه مومي هغوی بايد پاک لمني غوره کړي تر دې چې الله په خپلې پېرزوينې سره هغوی شتمن کړي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم د اسلامې امت ځوانانو ته داسې ارشاد فرمايي:

«يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ؛ فَإِنَّهُ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَأَحْصَنُ لِلْفَرْجِ، وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَإِنَّهُ لَهُ وِجَاءٌ»

ژباړه: ای ځوانانو ! د تاسې نه چه هر څوک د نكاح توان لري نكاح دې وکړي ، ځکه نكاح د سترګو او عورت د حفاظت سبب ګرځي ،او که څوک د ازدواج توان نه لري روژه دې ونيسي ځکه روژه شهوت کنترولوي ، (روژه خپله د صبر تمرين دی).

په ياد ولرئ چې الله تعالی د دريو ډلو د اقدام کوونکو مرسته کوي او هغوی ته د ترقی اسباب برابروي ،لکه څنګه چې په حديث شريف راغلي چې پيغمبرصَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:«ثَلَاثَةٌ حَقٌّ عَلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ عَوْنُهُمْ: الْمُكَاتَبُ الَّذِي يُرِيدُ الْأَدَاءَ، وَالنَّاكِحُ الَّذِي يُرِيدُ الْعَفَافَ، وَالْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ»

ژباړه: درى ډلې دي چې الله تعالى حتماً د هغه سره مرسته او مدد کوي ،غلام چې غواړي د آزادی اسباب برابر کړي او ځان له مالک څخه خلاص کړي

،هغه څوک چې غواړی خپل عفت او عزت په شرعي ازدواج سره وساتي (نکاح ) ، او د الله تعالی د لارې مجاهد.

## د اولاد ادبي روزنه

**اسلامي آداب :**

مخکې مو وویل چې اخلاق د ښو صفاتو او آدابو مجموعه ده .

آداب د ادب جمع ده او ادب د ښو او حمیده عاداتو نوم دی .

**اول- د والدین سره ادب او احترام :**

والدین ته پکار ده چې خپل اولادونه ته د مور او پلار ادب ، احترام او ښه سلوک کولو باندې وروزي ځکه چې د الله تعالی د عبادت کولو وروسته د والدینو سره د ښه سلوک کولو حکم شوی دی :

لقوله سبحانه وتعالی :[وَقَضَى رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ أَحَدُهُمَا أَوْ كِلَاهُمَا فَلَا تَقُلْ لَهُمَا أُفٍّ وَلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُلْ لَهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا * وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُلْ رَبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا ] (الإسراء/۲۳ ، ۲۴).

ژباړه : ستا رب حکم کړی دی چې له هغه پرته (د بل هیچا او هیڅ شي ) عبادت مه کوئ او له مور او پلار سره ښه وکړئ ، که د هغوی یو یا دواړه ستا سره زړښت ته ورسیږي ، ورته اف (هم) مه وایه ( د دوی ډیر لږ سپکاوی هم مه کوه ) او پر دوی د رټلو چیغه مه وهه بلکي د دوی سره په ادب او درناوی خبره کوه .

له ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی چه ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وکړه چه کوم اعمال بهتر دی؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل :« الصَّلاَةُ عَلَى وَقْتِهَا، قلتُ : ثُمَّ أيٌّ ؟ قَالَ : بِرُّ الوَالِدَيْنِ، قلتُ : ثُمَّ أيٌّ ؟ قَالَ : الجِهَادُ في سَبِيلِ اللهِ ( متفقٌ عَلَيهِ).

ژباړه : په خپل وخت لمونځ کول ،ماوویل ددی نه ورسته ؟ نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل د موراو پلار سره ښه سلوک !ماپوښتنه وکړه ددی نه ورسته کوم؟ هغوی صلی الله علیه وسلم وفرمایل د الله (جل جلا له) په لار کی جهاد همدارنګه رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمايي : « رِضَا الرَّبِّ مِن رِضَا الوالدين وَسَخَطُ الرَّبِّ فِي سَخَطِ الْوَالِدين (ترمذی ۱۸۹۹-، البزار ۲۳۹۴ او حاکم ۱۵۲/۴).

ژباړه: د الله تعالی رضا د مور او پلار په رضا او خوښۍ کې ده او د الله غضب د مور او پلار په خفګان او نا خوښۍ کې دی .

او د مور پلار نافرماني کول او د هغوی سره بد کول د شرک وروسته ستره ګناه ده ، د بخاري شريف په حديث راغلي «أَلا أُنَبِّئُكُمْ بِأَكْبَرِ الْكَبَائِرِ»؟ ثَلاثًا. قَالُوا: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: «الإِشْرَاكُ بِاللَّهِ، وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ» (رواه البخاري).

ژباړه: آيا تاسې له سترو ګناهونو خبر نه کړم ؟ ( دا جمله ) يې درې ځله تکرار کړه ، صحابه رضی الله عنهم وويل : هو، يا رسول الله صلی الله علیه وسلم !،

رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل : د الله تعالی سره شریک نیول او د مور او پلار نافرماني کول .

**دوهم- د ورونو او خویندو ادب او احترام** :د مسلماني کورنۍ بل اخلاقي مسؤلیت دا دی چې د خپلو اولادو په زړه کې یو له بله د محبت او احترام فضاء را مینځته کړي ، ورونه او خویندې یو د بل احترام وکړي ، یو بل ته ضرر او تکلیف ونه رسوي .

ابی هریرة رضی الله عنه روایت کوي چې نبی صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«من أشار إلى أخيه بحديده فإن الملائكة تلعنه حتى إن كان أخاه لأبيه وأمه» (رواه مسلم).

ژباړه : چا چې خپل ورور ته په اوسپنه اشاره وکړ ( چاقو و غیره ) ملائکې پر هغه باندې لعنت وایي که څه هم هغه یې پلارنی یا مورنی ورور وي .

امام نووي رحمه الله وایي په دې مبارک ارشاد کې د مسلمان د حرمت شدید تأکید دی هغه که په وېرولو ، تعرض او یا ضرر او تکلیف رسولو سره وي .

د مسلماني کورنۍ له واجباتو څخه دي چې د کورنۍ د ټولو افرادو که لویان دي او کوچنیان د هغوی تر مینځ د اخوت ، محبت زمینه برابره او د هغوی په مینځ کې عدل قایم کړي .

**د استاذ احترام :**

د علماء لپاره لوړې درجې دي ، علماء د انبیاء وارثان دي .

رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي :« فضل العالِم على العابد كفضلي على أدناكم»

ژباړه : د عالم فضیلت پر عابد باندې داسې دی لکه زما فضیلت د تاسې څخه په یو ادنا باندې .

رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«ان الله وملائكته وأهل السموات والأرضين حتى النملة في حجرها، وحتى الحوت ليصلون على معلم الناس الخير» (أخرجه الترمذي، ٥/ ٥٠) .

ژباړه:(یقیناً الله تعالی، د هغه ملائکې، د آسمانونو او ځمکو اهل او حتی په غارونو کې میږیان او حتی ماهیان په هغه معلم او لار ښوونکي باندې درود وایي چې خلکو ته په خیر باندې لارښوونه کوي) .

د ټولنیزو حقوقو څخه یو دا دی چې والدین خپلو اولادونو ته د استاذ د احترام نصیحت وکړي ، لکه : استاذ ته د مخامخ کېدو پر مهال د سلام کول ، په ادب سره کیناستل او د هغه درس او خبرو ته غوږ نیول ، د غږ نه پورته کول او داسې څه نه کول چې هغه یې بد ګڼې او د هغه د هر ډول بې احترامۍ څخه ځان ساتل .

اولاد په دې باندې پوه کول چې چا د خپل استاذ اهانت کړی دی د هغه بې احترامي یې کړی وي هغه هیڅکله د علم نافع خاوند نشي کیدای.

نن ډیرې کورنۍ د خپلو اولادونو د ادب او تربیې څخه غافله دي همدا وجه ده چې د اولاد څخه یې کلی ، کوچه او مکتب نا آرامه او په تکلیف دي .

**دریم- د ګاونډې سره ادب او احترام**

د اسلام د ټولنیزو حقوقو څخه یو دا دی چې مسلمان به خپل ګاونډې ته هیڅ قسم ضرر نه رسوي ، والدین به خپلو اولادونو ته نصیحت کوي چې ګاونډیانو ته به ضرر او تکلیف نه رسوي ، هغوی ته به ښنځل نه کوي ، د هغوی د اولادونو سره به جنګ نه کوي ، د هغوی کور ته به ډبرې نه ولي ، بې ضرورته به بام ته نه خیږي د هغوی کور ته به نه ګورې او د هغوی بې احترامي به نه کوي .

له ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چې:رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:« واللَّهِ لا يُؤْمِن، واللَّهِ لا يُؤْمِن، واللَّهِ لا يُؤْمِن » قِيل: منْ يا رسولَ اللَّه؟ قال:« الَّذي: لا يأْمنُ جارُهُ بَوَائِقَهُ» (متفق علیه).

ژباړه : په الله قسم مؤمن نه دي په الله قسم مؤمن نه دی په الله قسم مؤمن نه دی. وویل شول څوک یا رسول الله صلی الله علیه وسلم؟ ویې فرمایل: هغه څوک چې ګاونډی یې له شر څخه په امن نه وی.

او د مسلم شریف په یو روایت کې راغلي : « لا يَدْخُلُ الجنَّة مَنْ لا يأْمنُ جارُهُ بوَائِقهُ»

ژباړه : جنت ته نشي تلی هغه څوک چې د ضرر څخه یې ګاوندې په امن نه وي .

**څلورم-د اجازې غوښتلو آداب :**

د اسلام د ټولنيزو حقوقو څخه بل حق دا دی چې مسلمان د اجازې پرته د بل کور ته نه ننوځي ، والدين کرام دې خپلو اولادونو ته دا لاندې احکام ور زده کړي :

١- د ګاونډې ، خپلوانو او بل چا کور ته به د اجازې پرته نه ننوځي :

الله سبحانه وتعالی فرمايي:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آَمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ] (النور ٢٧).

ژباړه: ای مؤمنانو! له خپلو کورونو څخه پرته نورو کورونو ته تر هغې مه ننوځئ څو اجازه وانخلئ او پر کورنۍ سلام وا چوئ دا کړنلاره ستاسې د پاره ډېره ښه ده. ښايي چې تاسې به دې ته پاملرنه وکړئ.

٢- کور ته به د فاسقانو او غلو په څېر په ديوال باندې نه اوړي بلکې د دروازې له لارې به ننوځي:

[وأتوا البيوت من أبوابها] (سورة البقرة الآية: ١٨٩).

٣- ماشومان به د بل اتاق ته په دريو وختونو کې بې اجازې نه ننوځي د سهار د لمانځه مخکې، غرمه او د ماسختن له لمانځه وروسته او بل وخت باک نه لري:

الله سبحانه وتعالی فرمايي: [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آَمَنُوا لِيَسْتَأْذِنْكُمُ الَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ وَالَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مِنْ قَبْلِ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَحِينَ

تَضَعُونَ ثِيَابَكُمْ مِنَ الظَّهِيرَةِ وَمِنْ بَعْدِ صَلَاةِ الْعِشَاءِ ثَلَاثُ عَوْرَاتٍ لَكُمْ ...] (النور ٥٨).

ژباړه: ای مؤمنانو! اړينه ده چې ستاسې خدمتګاران او ستاسې هغه ماشومان چې لا تر اوسه پورې د پوهې حد ته نه دي رسيدلي، په دريو وختونو کې دې د اجازې په اخيستلو سره تاسې ته راځي د سهار له لمانځه نه مخکې او غرمه چې کله تاسې جامې وباسئ، او د ماسختن له لمانځه وروسته دا درې وختونه ستاسې د پاره د ستر وختونه دي.

**پنځم- د خبرو او سلام اچولو آداب :**

**الف): د خبرو مسنونه آداب :**

والدينو ته پکار ده چې خپلو ماشومانو ته د خبرو اسلامي آداب په پوره اهتمام ور زده کړي تر څو بلوغ ته رسيدلو وروسته پوره ورسره عادت وي .

هر خبره که ښه وي يا بده د انسان په اعمالو کې ليکل کيږي ، ښه خبره صدقه ده لکه په حديث شريف راغلي :« والكلِمةُ الطَّيِّبَةُ صدَقَةٌ » (او نيکه خبره صدقه ده ) .

خبرو ته توجه او يا د ژبې حفاظت زيات اهميت لري ، ژبه هم د فلاح او کاميابۍ وسيله ده او هم د هلاکت او بربادۍ .

جناب رسول صلى الله عليه وسلم فرمايلي :« أَلاَ أُخْبِرُكَ بِمَلاَكِ ذلِكَ كُلِّهِ؟. قُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ اللّهِ، فَأَخَذَ بِلِسَانِهِ وَقَالَ: كُفَّ عَلَيْكَ هذَا. قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللّهِ، وَإِنَّا لَمُؤَاخَذُونَ بِمَا نَتَكَلَّمُ بِهِ؟ فَقَالَ: ثَقِلَتْكَ أُمُّكَ يَا مُعَاذُ، وَهَلْ يَكُبُّ النَّاسَ فِي

النَّـارِ عَلَى وُجُـوهِهِمْ -أَوْ قَـالَ: عَلَى مَنَـاخِرِهِمْ- إِلاَّ حَصَـائِدُ أَلْسِـنَتِهِمْ؟ (رواه الترمذي حسن صحيح).

ژباړه : آیا تا د د ټولو د آساس او بنسټ نه خبر نه کړم ؟ و مې ویل : هو ،یا رسول الله ! هغه خپله ژبه ونیوله او یې فرمایل : دا وساته . ومې ویل ای د الله پیغمبره ! ایا مونږ په هغه څه باندې پوښتل کیږي چې په دغه (ژبه ) سره یې وایو ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : مور دې ستا په غمرازی کېني ( الله تعالی ) خلک په مخونو خپلو او یا دا چې ویې فرمایل : په پوزو خپلو سره د دوزخ په اور کې غورځوي ، مګر دا یوازې په بیهوده خبرو او د دوی د ژبو د کرلو په وجه .

**د خبرو کولو ځینې مسنونه آداب :**

۱- خبرې باید واضح او روښانه وي او که بې له تکرار څخه څوک نه پوهیږی تکرار شي.

۲- خبرې باید د مقابل لورې له سویه سره برابرې وي د داسې لغاتو او الفاظو کارول پکار نه دي چې اوریدونکی نه وربانديې پوهیږي .

( إن الله -عز وجل- يبغض البليغ من الرجال ، الذي يتخلل بلسانه كما تخلل الباقرة بلسانه )

۳- بې ضرورته د خبرې اوږدول په کار نه دي .

۴- د بل په خبره کې ور کدېدل نه دي پکار کله چې د هغه خبره خلاص شي خپله خبره کول پکار دي .

**د سلام مسنونه آداب :**

١- سلام اچول د محبت او سلامتیا او ورورولی اظهار دی ، د مسلمانانو تر مینځ د محبت وسیله ده ، جناب رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«لا تد خلو الجنة حتی تو منوا ولا تو منو حتی تحابو او لا أدُلکم علی شيء اذا فعلتموه تحاببتم افشو السلام بینکم » (رواه مسلم ).

ژباړه : نشئ تلی جنت ته تر هغه پورې چې پوره مؤمن نه شئ او تر هغه پورې (کامل ) مؤمن نشئ کیدای . څو پورې چې تاسو کې د یو بل سره مینه محبت نه وی پیدا شوی . ولی زه تاسو ته هغه عمل ونه ښایم چې د هغه په کولو سره ستاسي په منځ کې محبت پیداشي هغه دا دی چې سلام په خپل مینځ کې ښه خور کړئ.

٢- د سلام لفظ عبارت دی له : «السلام علیکم » یا «السلام علیکم ورحمة الله » او یا « السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته » (سلامتیا دې وي پر تاسې ، برکتونه او رحمتونه د الله دې وي پر تاسو باندې).

٣- سلام اچول پر مسلمان باندې یو ټولنیز حق دی .

رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي :« حق المسلم علی المسلم سِت قیل ما هُن یا رسول الله قال اذا لقیته فسلم علیه واذا دعاک فاجبه و اذا استنصحک فانصح له و اذا عطس فحمد الله فشمته وَ اِذا مرض فعده واذا مات فاتبعهُ .» (رواه مسلم).

ژباړه : په یو مسلمان باندې د بل مسلمان شپږ خاص حقونه دي . اول دا دی چې مخامخ شو نو سلام به کوی . دوهم داچې دعوت در کړي نو دعوت به یې قبلوې (په شرط ددی چه څه شرعي مانع نه وي) . دریم دا چې: د نصحیت او مشورې غوښتنه در څخه وکړي نو هغه ته به نصیحت او مشوره ورکوې ، څلورم دا چې د پرنجي پر مهال هغه ته د الحمدلله ځواب په یرحمک الله سره ورکول ،پنځم دا چې کله مریض شي د هغه پوښتنه کول ، شپږم دا چې کله وفات شي د هغه په جنازه کې کډون کول.

۴- سلام اچول د کور څخه د باندې او همدارنګه د خپل کور اهل عیال ، والدینو ، وروڼو او خویندو باندې سنت مؤکد دي او د سلام ځواب ورکول واجب دي .

لقوله سبحانه وتعالی :«وَإِذَا حُيِّيْتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّواْ بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا» (النساء :۸۶ ) .

۵- په سلام اچولو کې وړاندېوالی مستحب دی .

د حضرت ابو امامه رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمایې : چه په خلقو کې الله ته نیږدی او د هغه د رحمت مستحق هغه بنده دی چې په سلام کولو کې وړاندې والی کوي.

۶- روان سړی دې په ناستو خلکو سلام اچوي ، په سپرلی سپور سړی دې په پیاده باندې سلام اچوي ، کوچنی دې لوی ته سلام اچوي ، او لږ سړي دې ډېرو ته سلام اچوي .

رسـول صلى الله عليـه وسـلم فرمايلي :«يُسـلم الصـغير على الكبير والمارُ على القاعد و القليلُ على الكثير» ( رواه البخارى).

ژباړه : کوچنی دی لوی ته سلام کوي ، او په لاره باندې تلونکی او روان دې په ناستو خلکو سلام اچوې او لږ سړی دې لوی ډلې ته سلام کوي.

**شپږم- د مجلس آداب**

۱- مجلس ته د راتلونکی لپاره لازم ده چې د مجلس یوې غاړې ته کېنې ، د دوو کسانو په مینځ کېنني او که د هغوی په اجازه وي باک نلري .

۲- کله چې یو له تاسې له مجلس نه پاځيږي او بیا را وګرځي، دی د هغه ځای ډير مستحق دی.

۳- د راتلونکو کسانو لپاره تغظمي قيام پکار نه دی ځکه رسول صلى الله عليه وسلم داسې کول نه خوښول ، مګر د رخصتيدو پر مهال درېدل باک نلري .

۴- په مجلس کې بې ادبه کيناستل د مروت خلاف کار دی ، داسې چې نور ناست وي او ده پښې زغولې وي يا يې ستر سم پټ نه وي او يا داسې حرکات او ناستی چې عرفاً يې خلک بد ګڼي .

۴- په مجلس کې د دوو کسانو پټې خبرې شرعاً منع دي.

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[إنما النجوى من الشيطان] (المجادله ۹و۱۰ ).

ژباړه : پټې (دغوږ خبرې) د شیطان کار دی .

رسـول صلى الله عليـه وسـلم فرمايلي :«إذا كانوا ثلاثة، فلا يتناجى اثنان دون الثالث» (رواه البخاري ).

ژباړه: چې کله درې سړي يو ځای وي نو دو تنه دې د يو نه بغير پټې خبرې نه کوي
بل ځای فرمايي :«إذا كنتم ثلاثة، فلا يتناجى رجلان دون الآخر حتى تختلطوا بالناس، أجل أن يحزنه»(رواه البخاري) .
ژباړه: کله چې تاسې درې تنه يو ځای وئ نو دوه تنه دې يو نه بغير پخپل مينځ کې. پټې خبرې نه کوي ترڅو چې هلته نور خلک نه وي راغلي ځکه په دې سره به دريم کس ته ضرر او صدمه ورسيږي .
مطلب دا شو چې درې سړي يوځای وي نو دريم کس نه بغير به پټې د زار خبرې نه کوي ځکه چه دريم بدګومانه نشي چې دوی به زما خلاف خبرې کوي پريشانه نشي چې زه يې د رازدارۍ اهل ونه بللم.
په حديث شريف کې د دريو کسانو يادونه شوی ده مګر که ډير خلک هم وي او يو کس د دوی له راز ويلو جلا وي همدا حکم لري (انوارالقرآن تفسير سوره المجادله ).
سبحان الله د اسلام د سپيڅلي دين څومره لوړ اخلاق دي.

**اوم- د خوړلو او څښلو آداب**

۱- د خوراک په شروع کې د بسم الله ويل .
۲- خوراک په ښی لاس خوړل او د خپلې مخې څخه نمړۍ کول.
۳- د ډير ګرم خوراک خوړل مکروه دي .
۴- په يو ځايې خوراک کې برکت دی.

۵- د خوراک د ګوتو او لوښی پاکول مستحب دي .
۶- د لولیدلي لمړي پورته کول او خوړل پکار دي ، ځکه داسې کول د جناب رسول صلی الله علیه وسلم نقل شوي دي .
۷- د خوراک نه پس د شکر دغه لاندې مسنونه دعا کول :
الحمد لله الذی اطعامنا و سقانا وجعلنا مسلمین ( رواه الترمذی و ابوداؤد ).
۸- د خوراک نه وروسته د لاسونو مینځل:
برکت الطعام الوضوء قبله کا الوضوء بعده ( رواه الترمذی او ابوداود. )
ژباړه: د دو دی نه مخکې او وروسته د لاسونو او خولې مینځل د برکت سبب ګرځي.
د ابی هریرة رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : څوک چې د شپې په داسې حالت کې بیده شي چې د هغې په لاسونو د غوړوالی اثر وي ( لاسونه یې نه وي مینځلی ) او ددې په وجه ده ته څه ضرر ورسیږي ،بس خپل ځان دې ملامت کړي . (ترمذي ، ابن ماجه او ابوداود) .

**د اوبو د څښلو آداب:**

۱- د اوبو څښلو مخکې «بسم الله » ویل او په آخر کې الحمدلله ویل .
۲- اوبه په دوو یا دریو دمو یا ساه ګانو څښل پکار دي
عن ابن عباس قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لاتشربوا واحد کشرب البعیر ولکن اشربوا مثنی وثلث وسمو اذا انتم شربتم واحمدوا اذا انتم رفعتم . ( رواه الترمذی).

ژباړه : د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایی چه : تاسو د اوښ په شان په یوه ساه اوبه مه څکئ، بلکه په دوه دوه ، دری دری ساه ګانو باندې اوبه څکئ ،او کله چې تاسو څښل کوئ نو بسم الله وایئ ، او د څښلو وروسته د الله حمد او شکر ادا کوئ.

۳- په اوبو کې د ساه اخیستل او پوکل منع دي .

عن ابن عباس قال نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم ان یتنفس فی الا ناء او ینفخ فیه . ( رواه ابو داؤد وابن ماجه )

ژباړه : دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روایت دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د اوبو په لوښی کې دساه اخستلو او پوکې نه منع فرمایلې ده.

نني ساینس چې کله دا خبره وڅیړله چې په اوبو کې ساه ایستل څه تاوان لري نو نتیجه داسې راووتله چې هغه ساه چې انسان یې له هوا څخه اخلي اکسیجن دی او هغه ساه کوم چې له بدن څخه خارجیږي کاربندای اکساید دی ، کله چې کاربن دای اکساید له ابو سره یوځای شي یو ډول تیزاب د کاربونیک اسید په نوم جوړوي چې د معدی په هضمې سیستم بد اثر لري کیمیاوي معادله یې په لاندې ډول لیکلای شو.



$CO_2 + H_2O = H2CO_3$

**آتم- د خوب آداب**

۱- د بيده کيدو او له خوب څخه د پاڅيدو مسنونه دعا:

د بيده کيدو په وخت کې دا دعا ويل کيږي (اللهم باسمك أموت وأحيا) او له خوب څخه د پاڅيدو په وخت کې دا دعا لوستل کيږي ( الحمد لله الذي أحيانا بعد ما أماتنا وإليه النشور ) چې دا د جناب نبی کريم صلى الله عليه وسلم عادت مبارک ؤ . (صحيح البخاري ۵۹۵۳ )

۲- هر بيګا د خوب بسترې ته د تلو په وخت کې د معوذتين او قل الله ويل :

عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ الله عَنْهَا: أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم إِلَى فِرَاشِهِ كُلَّ لَيْلَةٍ، جَمَعَ كَفَّيْهِ ثُمَّ نَفَثَ فِيهِمَا، فَقَرَأَ فِيهِمَا: قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ( وَ )قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ( وَ )قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ( ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا مَا اسْتَطَاعَ مِنْ جَسَدِهِ، يَبْدَأُ بِهِمَا عَلَى رَأْسِهِ وَوَجْهِهِ، وَمَا أَقْبَلَ مِنْ جَسَدِهِ، يَفْعَلُ ذَلِكَ ثَلاثَ مَرَّاتٍ. (بخاری:۵۰۱۷)

ژباړه: د بې بې عايشې رضی الله عنهما نه روايت دی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دا عادت ؤ چه هر شپه به چه کله د آرام د پاره خپلې بسترې ته تللو نو خپل دواړه لاسونه به يې يو ځای کړل قل هو الله ، او قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس به يې ولوستل بيا به يې په لاسونو باندې وپوکل بيا د کوم ځای پورې چه کيده په خپل مبارک بدن ، سر ، مخ او نور بدن به يې راکشول دا عمل به يې درې ځله تکرارولو .

ددې سورتونو ډېر فضيلت ذکر شوی دی او ډيرې ګټې لري د هغه ذکر دلته نشي کيدای علماؤ په دې ډېر ټينګار کړی دی چه بايد هر مسلمان د دغه سورتونو تلاوت کول د ځان عادت جوړ کړي .

۳- په ښي اړخ پرېوتل او مخ قبلې ته برابرول :

د براء بن عازب په حديث کې راغلی دي چې پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايي : کله چې استراحت ځای ته ځې نو د لمانځه پشان اودس کوه او په ښي اړخ بيده شه ( بخاري ۶۳۲۰ ، ۷۳۹۳ او مسلم ۲۷۱۴ ).

علماء کرام وايي : لومړی په ښی اړخ څملاستل پکار دي وروسته که په بل اړخ شي باک نه لري .

او په اوداسه سره څملاستل مستحب دي .

۴- پړمخې يا پر خيټه څملاستل جايز نه دي :

له دا ډول څملاستلو څخه جناب نبی کريم صلی الله عليه وسلم منع فرمايلی ده : عن جابر قال نهی رسول الله صلی الله عليه وسلم ان يرفع الرجل ا حدا رجليه علی الاخری وهو مستلق علی ظهره .( رواه مسلم )

ژباړه : دحضرت جابر رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ددی خبری نه منع فرمايلی ده چې سړی په پړمخ څملاستو کې يوه پښه پورته کې او بله پښه باندې واچوی .

بل حديث شريف کې راغلي : عن ابی هريرة قال رأی رسول الله صلی الله عليه

وسلم رجلاً مضطجعا عل بطنه فقال ان هذه ضجعة لا يحبها الله . ( رواه الترمذی )

ژباړه : د حضرت ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صل الله عليه وسلم يو سړی په ګيډه باندی اړولی ملاست ولد نو هغوی صل الله عليه وسلم و فرمايل : چې دځملاستو دا طريقه د الله تعالی خوښه نه ده .

۵- په داسې چت خوب کول چې چاپيره کټاره او ديوال ونه لري منع دي :

عن جابر قال رسول الله صل الله عليه وسلم ان ينام الرجل على سطحٍ ليس بمحجورٍ عليه .( رواه الترمذی )

ژباړه : د حضرت جابر رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صل الله عليه وسلم د يو کس په داسې چت باندی د ويده کېدلو نه منع فرمايلې ده چې په کټاره يا ديوالونو احاطه شوی نه وي .

( جامع الترمذی )

۶- د بيده کېدو مخکې د دروازو تينګول .

کله چې سړي بيده کيږي د کور دروازه او اتاق ورونه به تړي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

«من بات على ظهر بيت ليس له حجار، فقد برئت منه الذمة » (رواه أبو دود – ۵۰۴۱،صحيح الجامع ۶۱۱۳).

يعنې: چا چې په داسې کور يا اتاق کې شپه سبا کړه چې ور يې تينګ کړی نه وو، مسئوليت يې پر خپله غاړه دی.

عن ابن عمر رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم «نهى عن الوحدة، أن يبيت الرجل وحده أو أن يسافر وحده» (رواه أحمد في المسند ٢/٩١).

ژباړه: ابن عمر رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم له يواځې والي منع فرمايلې، دا چې سړي يواځې بيده شي او يا يوازې سفر وکړي.

دا نهی په دې خاطر ده چې په يواځېوالی کې د وېرې، د دوښمن د هجوم، مرض او نور څه خطر دی.

**نهم- د تللو ،لارې او کيناستلو آداب :**

١- په متوسط ډول تګ چې نه ډير ورو او نه ډير په تزی سره ځکه چې دا د الله تعالى د نيکو بنده ګانو صفت دی، الله سبحانه وتعالى : وَعِبَادُ الرَّحْمَنِ الَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا وَإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُونَ قَالُوا سَلَامًا (الفرقان:٦٣) .

ژباړه : او د رحمان خدای رښتيني بندګان هغه دي چې پر ځمکه په ورو ځي او که له جاهلانو سره مخ شي نو ور ته وايي تاسې ته سلام دی (د هغو د بدو ځواب نه ورکوي ).

٢- ځمکې ته کتل ، د بيګانه ښځه د سترګو ساتل .

٣- چا ته ضرر نه رسول ځکه مسلمان هغه دی چې د ده د لاس او ژبې له ضرر څخه خلک په امن وي « المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده» (متفق عليه) .

۴- د لارې څخه د مضر او اذیت رسونکي شی لرې کول ځکه چې دا کار د ایمان یوه برخه ده .

۵- نورو ته سلام کول او د سلام ځواب ورکول .

۶- په نیکۍ امر او له بدۍ څخه منع کول .

۷- لار ورکي ته لارښوونه کول .

۸- په لاره کې قضاء حاجت نه کول .

۹- د بل کس سره د بار په پرته کولو او یا بل مشکل باندې اخته کس سره کومک کول .

۱۰- بې ضرورته په لار کې کیناستل او درېدل او یا په لاره کې لوبې کول پکار نه دي ځکه د خلکو د ترېدو د منع او ضرر سبب کيږي .

۱۱- په لاره او یا د تللو په وخت کې خوراک کول د مروت خلاف دی .

۱۲- ښځې به د لارې یوې خواته ځي .

۱۳- د لوړ ځای ختلو پر مهال او سپرلی ته ختلو پر مهال دا دعا ویل .

یعنې کله به چې په مخ پورته ځاي کې ختلو تکبیر(الله اکبر) به مو ویلو او کله چې به مخ په زوړ کوزیدلو تسبیح (سبحان الله) به مو ویلو.

**د جومات آداب :**

-جومات ته د ننوتلو په وخت کې باید اول ښئ پښه وړاندې شي او دا دُعا وویل شي :«اَللهُمَّ افْتَحْ لِی اَبْوَابِ رَحْمَتیکَ» (ای الله ! زما پر مخ د خپل رحمت دروازې پرانیزه ).

۲ -د جومات له ننوتلو تر کیناستو مخکې دوه رکعته تحیة المسجد لمونځ کول پکار دي ،د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دی ( په تاسې کې چې څوک جومات ته ولاړشي ترڅو یې چې دوه رکعته لمونځ نه وی کړی تر هغې دې نه کښیني ) (بخاری او مسلم ).

۳ -د جومات نه د وتلو په وخت کې به اول چپه پښه وړاندې کوئ او دا دُعا به وایی :«اَللهُمَّ اِنِّی اَسْئَلُکَ مِنْ فَضْلِکَ» (ای الله ! زه له تا نه ستا د فضل او کرم غوښتونکی یم ).

۴ -په جومات کې د زیات نقش او نګار کوښښ کول نه دي پکار.

۵ -جومات ته په داسې حال کې تلل چې اوږه،پیاز،تنباکو او نور بد بویه شی یې خوړلی وي تلل مکروه دي لومړی دې خپله خوله وویځي بیا دې مسجد ته داخل شي.

۶ -په جومات کې خبرې کول ،شورماشو کول او اخیستل او خرڅول مکروه دي له بده مرغه زمونږ د هیواد په ډیرو برخو کې چې ژمی شي او خلک وزګار شي نو بیا په جومات کې خپل بنداروﻧﻪ کوي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایې : څوک چې په جومات کې خبرې کول پیل کړي ،نو ملائکې په لومړی ځل ورته وایي (اُسْکُتْ یَا وَلِیَ الله ) یعنی ای د الله دوسته ! چوپ شه ،که بیا خبرو ته دوام ورکړي ،نو ملائکې ورته وایي (اُسْکُتْ یَا بَغِیْضَ الله )چوپ شه ای د الله دوښمنه ! که بیا هم

چوپ نشي نو په دریم ځل ملائکې ورته وايي (أُسْكُتْ لَعْنَتُ اللّٰه عَلَيْكَ ) يعنی: چپ شه د الله (جل جلاله) لعنت دې وي پر تا.

همدارنګه په مشکوة شريف کې د شعب الايمان په حواله يو روايت راغلی چې جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايې : په آخيره زمانه کې به داسې خلک پيدا شي چې جومات ته به راځي ،هلته به ډلې ډلې کښيني او دنياوي خبرې به کوي تاسې له داسې خلکو سره مه کښينئ ،ځکه چې الله تعالی ته په جومات کې د داسې خلکو ضرورت نشته )عمدة الاحکام ص ٧٥ )

.

ابن همام رحمه الله وايي په جومات کې دنياوی خبرې نيکی داسې له منځه وړي لکه وچ بوټي چې اور خوري (فتح القدير).

٧ -په جومات کې په اوچت آواز لمونځ کول نه دی پکار ځکه چې د نورو د لمونځ د اخلال سبب ګرځي او د نورو په لمانځه کې اخلال ګناه ده.

٨ -د جومات دوازه تړل نه دي پکار که د سامان د غلا خطر وي نو په هغه وخت کې يې تړلی شي چې د لمانځه وخت نه وي.

٩ -جومات ته د جنوب ،نفاسې او حائضې ننوتل ګناه ده.

١٠ -په جمات کې لاره جوړل ناجايز دي که سخت ضرورت وي نو باک نلري.

١١ -په جومات کې چې کوم ځای خالي وي هلته کيناستل په کار دي د خلکو په اړو تيريدل ګناه ده.

۱۲ -په پښو پورې که څه ختې نيښتې وي مخکې له ننولو جومات ته د هغه وينځل پکار دي.

۱۳ -په جومات کې د ننه آذان ويل مکروه دی.

۱۴ -جومات ته د داسې ماشومانو بوتلل چې د متيازو حال نشي ويلای يا داسې بې عقل او ليونی چې په پاکی او ناپاکی نه پوهيږي ننول پکار نه دي.

داسې ماشومان چې د لمانځه سن ته نه وي رسيدلی د لمونځ کونکو د آزار سبب ګرځي.

او هغه چې جومات ته يې تلل مشروع وي د جومات اهل بايد پر هغوی سخت ګيري ونه کړي

(اسلامې فقه ،فتاوی اسلامية ،عمدة الاحکام ،فتاوي المحمودي حنفي )

## آتم فصل

## د اولاد علمي تربيه

په مور او پلار لازمه ده چې خپل اولاد (هلکانو او نجونو) ته د بلوغ څخه مخکې عقيده او د شريعت ضروري احکام ور زده کړي لکه:طهارت، لمونځ، روژه او نور او همدارنګه د حرامو شيانو زده کړه لکه: د زنا، لواطت، غلا، شراب، غيبت، بهتان او نورو زده کړه وربانديې واجبه ده ځکه چې د بلوغ سره سم هغوی په تکلف کې داخليږي نو بايد د بلوغ څخه مخکې هغوی وپوهول شي .

(الموسوعة الفقية ج ۱۳ ص ۱۱ ) .

هغه ضروري شرعي احکام چې د بلوغ نه مخکې زده کول يې واجب دي :

۱- د اسلام او ايمان د ارکانو زده کړه په کوم چې عقيده صحي کيږي کوم چې بيان يې مخکې تير شو .

۲- د اوداسه ، غسل او حيض د احکامو زده کړه .

۳- د لمانځه او روژې د احکامو زده کړه .

۴- د حجاب تعليم ورکول چې د بلوغ څخه مخکې مستحب او د بلوغ څخه وروسته فرض دی .

۵- د قرآنکريم زده کړه .

۶- د کفر ، شرک او بدعت له اقوالو او اعمالو منع کول .

۷- د اخلاقو او آدابو زده کړه کوم چې بيان يې مخکې تير شو .

۸- د فحاشت ، موسيقۍ ، جنسي فلمونو او سريالونو څخه منع کول .

ځکه چې دغه شيان په نن عصر کې د ځوان نسل لپاره خطرناکه اخلاقي وباء ده چې لاندې ضررونه لري :

- ✓ د هندي، ترکي او نورو سريالونو او ډرامو له لارې په پوره چل او فريب سره په اسلامي ټولنه کې د نصرانيت، يهوديت او بوديزم عقائد خپرول.
- ✓ د سريال، ډرامې، اعلان او تبليغاتو له لارې په اسلامي ټولنه کې د رزيلو او فاسدو اخلاقو خپرول.

- ✓ په خلکو کې د بیګانه نارینه او ښځو کډ ژوند، بې حجابي، فحشاء او موسیقي رواجول.
- ✓ خلک په ورو مسائل مصروف ساتل او د سترو قضاوو څخه د هغوی غافله کول. مثلاً: د درس او تعلیم پرځای، لوبو او ورزش ته دومره وده او تبلیغات چې بلاخره ټول ورباندې مصروف شي.
- ✓ خاوند ته د ښځې پرېښودلو درس ورکول او همدارنګه ښځې ته د خاوند څخه د بغاوت درس ورکول، کورنی نظام خرابول او د زوجینو تر مینځ د اعتماد او اطمنان ختمول.
- ✓ په سترګو د منکر لیدل او د هغه څخه انکار او کرکه نه کول. چې د ګناه او منکراتو څخه کرکه او نفرت د ایمان ورستی درجه ده. یعنې سره له دې چې ډیر د دغو شیطاني مډیا په اضرارو پوه دي خو بیا هم د خپلې کورنی سره یو ځای د هغه ننداري کولو ته ناست او د کور مشر او مسئول د دغه فساد پر وړاندې خپل سقوط اختیار کړی وي.
- ✓ ټول وخت د فکر مشغول ساتل ځکه ځینې ډرامي او سریالونه زیات وخت نیسي د هغه د مسلسل لیدلو او تعقیب په فکر کې وي.
- ✓ د درس په زده کړه، کورني کار او درسي مسئولیتونو کې پاتې راتلل.
- ✓ د ماشومانو په خوب کې ډاریدل ځکه چې ځینې صحنې ماشومانو ته بدي وي او د نجونو او ځواناتو د آینده ژوند په اړه سوچونه او

تشویشونه پیدا کېدل ځکه چې دغه سریالونه د کفري ټولنو انعکاس کوي او په کفري ټولنه کې کورنۍ نظام پاشل شوی وي د زوجینو د محبت پر ځای د بیګانه سره د ملګری سیستم کارول کیږي، او د دغو صحنو لیدل په مسلمانه پیغله او مسلمان ځوان سخت بد اثر کوي.

- ✓ د بیګانه نارینه او ښځو تر مینځ د عشقي قصو بیانول، نجونو او ځوانانو ته د واده مخکې د عشق، اختلاط، د بیګانه سره ملګري او ارتباط درس ورکول او د ذهن څخه یې د پاک اسلامي با عفطه او پاکدامنه ژوند ایستل.
- ✓ د اسلامي اخلاقو، مینې محبت او وروروولۍ پر ځای د ماشومانو په ذهن کې د جنګ، قتل، وهلو او په قهر او غصه کېدو درس ورکول ځکه جنګي فلمونه، د وهلو او ټکولو جاهلانه لوبې او ورزش کوچنیو ماشومانو ته همدا پیغام رسوي.
- ✓ په اسلامي ټولنه کې د کفري دود او رواج خپرول ځکه چې د غربي درامو او سریالونو څخه لباس، اخلاق، بې حجابي او نور سلوک او فوچ عادات زده کوي.
- ✓ د سریالونو بل ستر هدف دا دی تر څو په خلکو کې خصوصاً په ځوانانو او نجونو کې شهوت خپور کړي او دوی د شهوت رانۍ او

شهوت پرستۍ باندې وروزل شي او د حيا او غيرت، مړانې جذبه يې ورختمه کړي.

لکه د نصرانيت يو مبلغ چې خپلو ملګرو ته د بيان په يو برخه کې وايي:

مونږ د مسلمانانو داسې نسل برابر او چمتو کړی چې استعمار د هغه په انتظار کې دی، داسې نسل چې د سختۍ په وړاندې مقابله نشي کولای، بې پروا،راحت طلبه اوټمبل دی کچيړې کوم لوړ مقام او مرتبه تر لاسه کړي د عيش او شهوت پرستۍ له کبله کومه د ځوانمردۍ سخا نلر ي (مسيحيت و پيژنئ ، دراسات في الاديان ص ۳۸۳).

- ✓ د وخت ضايع کيدل، انسان دنيا ته د يو ستر هدف لپاره راغلی دی چې هغه د الله تعالی عبادت دی (په ټولو چارو کې د الله تعالی فرمانبرداري کول) او دې دنيا ته بيا راتلل نشته. دوهم چانس، دريم چانس نلري، که چا د اسلامي شريعت موافق ژوند تر سره کړ کاماب او که د هغه مخالفت يې وکړ نامراد دی.

۹- د غلا ، چل او فريب ، په لوبو کې قمار وهلو څخه منع کول .

۱۰- د غيبت ، بهتان ، ښکنځلو او ټوکو او پر چا باندې له مسخرې کولو منع کول او خپل اولاد ته د هغه د ګناه او عواقبو تعليم ورکول .

۱۱- د حرام مال څخه منع کول .

**د علم اوزده کړې اهمیت :**

په اسلام کې علم دومره اوچت اهمیت لري چې د قرآن د نزول په پیل کې د علم یادونه شوې ده .

اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ * خَلَقَ الإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ * اقْرَأْ وَرَبُّكَ الأَكْرَمُ * الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ (العلق).

ژباړه: ولوله په نوم د خپل رب، هغه چې پیدا کړی دی انسان له ځوړنده توټې د وينې، ولوله او ستا رب ډېر کريم دی ، هغه (رب) چې ښودلی يې دی (خط انسان ته ) په قلم سره .

١- د علم په ذريعه انسان خپل ځان او خپل خالق (جل جلاله) پيژندلای شي.

[ فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ ] (محمد: ١٩).

ژباړه : پوه شه چې پرته له يو الله نه بل هيڅ معبود نشته.

٢- علم د الله تعالى څخه د وېرې او تقوى وسيله ده .

[إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاء] (الفاطر 28 ).

ژباړه: يقيناً د الله جل جلاله څخه د هغه پوه بنده ګان ( چې د شريعت په ضروري احکامو پوه وي ) وېرېږي

٣- چا ته چې الله تعالى د خير اراده وکړي په دين کې پوهه ورکوي :

«مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ » (3116 بخاري ) .

ژباړه: چاته چه الله پاک د خير اراده وکړي نو په دين کښې پوهه ور په برخه کړي .

۴- د علم حاصلول د جنت د لارو څخه یو لاره ده :

من سلک طریقاً یلتمس فیه علماً سهل الله له به طریقاً الی الجنة (رواه مسلم) .

ژباړه : څوک چې علم په لټه کې لاره طی کړي الله تعالی به هغه د جنت لاره آسانه کړي.

**اولادونو ته د تعلیم ورکولو اجراو ثواب:**

۱- رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: «مَن قرأ القرآن وعمل به ألبس والداه تاجاً يوم القيامة ضوءه أحسن من ضوء الشّمس في بيوت الدنيا فمَا ظنُّكم بالّذي عمل بهذا» (رواه أبو داود والحاكم، وقال: صحيح الإسناد).

ژباړه: چا چې قرآن ولوستو او په قرآن يې عمل وکړ – نو د قيامت په ورځ به د هغه د والدينو په سر باندې داسې تاج ور په سر شي چې د هغې رڼا به د لمر د رڼا نه ډيره ښايسته وي – هر کله چې هغه رڼا د دنيا په کورونو کې وي او لمر د آسمان نه زمونږ په خوا کې را کوز شي ددې وروسته رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: نو ستاسې څه ګمان کوئ د هغه چا په باره کې چا چه خپله دا عمل کړی وي.

۲- همدارنګه فرمايي : «سبع يجري للعبد أجرهن وهو في قبره بعد موته:من عَلّم علماً, أو أجرى نهراً , أو حفر بئراً , أو غرس نخلاً , أو بنى مسجداً , أو ورّث مصحفاً , أو ترك ولداً يستغفر له بعد موته» (الطبراني و صحيح الجامع ۳۵۹۶).

ژباړه: د اوو شیانو اجر په قبر کې مړي ته رسیږي، چا ته د علم ور زده کول، د ویالې جوړول، د کوهې کیندل، د ونو کښېنول، د جومات جوړول، د قرآنکریم وقف کول او داسې اولاد پرېښودل چې وروسته له مرګ نه ده ته بخښنه غواړي.

۳- د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دی: «إِذَا مَاتَ الْإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَنْهُ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثَةٍ: إِلَّا مِنْ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ، أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ، أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ»(رواه المسلم ۱۶۳۱).

ژباړه: کله چې انسان مړ شي عمل یې قطع کیږي بغیر له دریو څیزونو: جاریه صدقه، یا داسې علم چې له هغه څخه د خیر استفاده کیږي او یا صالح اولاد چه د مور او پلار د پاره دعا کوي.

**د زده کړې مراتب :**

۱- د طفل تعلیم د هغه په غوږ کې له آذان کولو پیل کیږي کوم چې د خپل خالق او إله طرف ته یې متوجه کوي ، او کله چې په خبرو راشي هغه ته به د کلمه (لا اله الا الله ) تعلیم ورکول کیږي .

۲- بیا به د (الف ،باء) توري ، حرکات ، کلماتو د زده کړې لپاره د یو ماهر قاري چې په تجوید باندې پوره حاکمیت ولري د نوراني قاعدې تعلیم ورکړ شي .

پخوا بغدادي قاعده په درسي نصاب کې مروج وه او اوس مهال په اکثره اسلامي هیوادونو کې نوراني قاعده رواج لري نوراني قاعده د قرآنکریم د

تجويد پر آساس ترتيب شوی ده چې د تجويد او صحي تلفظ لپاره مهم رول لري ځکه له کوچيني توب څخه أطفال د صحي تلفظ سره بلدوي .
۳- د قرآنکريم زده کړه ، قرآنکريم د الله سبحانه وتعالى هغه سپېڅلی کتاب دی چې د فضيلت او اهميت د پاره به دلته يوازې دومره ووايم چې نن عصر کې نه پيغمبر شته او نه هم وحی ځکه چې د پيغمبرۍ او وحی سلسله د جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم په رسالت سره ختمه شوې ده نن عصر د الله تعالى او د مخلوق تر مينځ د ارتباط وسيله يوازې قرآن او د رسول الله صلى الله عليه وسلم سنت دي .
قرآنکريم د الله تعالى هغه معجز کتاب دی چې کله يو طفل هغه صحي زده کړي نو بيا شرعي او عصري علوم ټول ورته آسانه کيږي .
د قرآنکريم د زده کړې تر څنګ د قرآنکريم د څه حصې حفظ کول ، د قرآنکريم څه حصه حفظ او يادول د لمانځه لپاره واجب ده او له بل لورې د قرآنکريم په زده کړه ، لوستلو او تجويد کې د زده کوونکي علمي سويه لوړوي .
۴- د قرآنکريم د زده کړې تر څنګ د ضروري شرعي علم تعليم ورکول کوم چې مخکې مو اشاره ورته وکړه .
۵- د شرعي علم تر څنګ د عصري علم کوم چې د انسان د ژوند ضرورت دی او هغه ته اسلامي امت ضرورت لري لکه :

- ✓ حساب چې په ورځني ژوند کې ضرورت دی ، رياضيات ، د نورو علمو لپاره ضرورت دی .
- ✓ علم الأرض (جعرافيه ، جيولوژي) : د ځمکې علم دی چې هيوادو د احوالو ، د ځمکې پراختيا ، طبقو ، جوړښت ، سيندونو ، بحرونو ، غرونو او نورو څخه بحث کوي .
- ✓ علم أحياء ( بيولوژي ) : د ژونديو موجوداتو څخه بحث کوي او انسان ته د الله تعالی د ستر قدرت نښې ښرګنديږي .
- ✓ تاريخ : د پخوانيو امتونو او واقعاتو څخه بحث کوي .
- ✓ کمياء : د مادې د خواص،مشخصاتو او تغيراتو څخه بحث کوي .
- ✓ الفيزياء (فزيک) : د مادي او طبيعت څخه بحث کوي .

کوم شيان چې په ځمکه او فضاء کې د انسان د استفادې لپاره پيدا شوي دي د هغه څخه د استفادې کولو څخه بحث کوي .

همداسې نور علوم کوم چې انسان ورته ضرورت لري.

**د تعليم په باره کې څو مهمې يادونې :**

١- په درس او تعليم کې په اولادونو باندې زيات محنت او سختي کول پکار نه دي ، په پيل کې يو ساعت د درس او سبق ويلو لپاره مقررول ، بيا دوه ساعته او بيا درې ساعته د هغه د وس او طاقت موافق د هغه نه محنت اخيستل پکار دي .

داسې نه چې ټوله ورځ سبق ورته وايي ځکه په دې سره د ماشوم او ماشومې د سترګيا له امله زړه تنګيږي او په دماغ يې فشار ورځي د دماغ او حافظې د نقصان سبب جوړيږي .

٢- د ضرورت پرته زياته او بار بار چُټي او رخصتي مه ورکوئ .

٣- د علم او زده کړې د حاصلولو لپاره د پوره عالم انتخاب پکار دی ، مثلاً که د قرآن قاري وي يا عالم وي نو پوره قاري وي ځکه که يو ځل يې تلفظ او احکام او مسائل غلط زده کړل نو د هغه اصلاح کول ډير مشکل دي .

## نهم فصل

## د اولاد بدني روزنه

بدني او جسمي پالنه او روزنه عبارت ده له : خوراک ، څښاک ، خوب ، نظافت او تنظيم ، درملنه او د ضرر څخه ساتلو ته وايي .

روغتيا او سلامتي د سالمې روزنې د پاره د انسان د بدني ځواکمنتيا دوه بنسټيزې پايې دي ځکه سالم عقل په سالم بدن کې دی ،او د ژوندانه د مسؤليتونو رفع کول بدني ځواکمنتيا ته اړتيا لري او سستي او ضعيفي د ډيرو مسؤليتونو د رفع کولو مانع ګرځي .

**د بدني روزنې فضيلت :**

جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:«للمرأة في حملها إلى وضعها إلى فصالها من الأجر كالمتشحط في دمه في سبيل الله، فإن هلكت فيما بين ذلك فلها أجر شهيد» (كتاب العيال لابن أبي الدنيا وأحكام النساء لابن الجوزي).

ژباړه: د ښځې د پاره د (اولاد) په حمل نیولو، ولادت تر جلاوالي پورې داسې اجر دی لکه د الله تعالی په لار کې بهره کوونکی که چیرې دا په دغه موده کې مړه شي هغې لره د شهید اجر دی.
همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: کومه ښځه چې د اولاد زیږیدو ناروغی له امله مړه شي هغه شهیده ده (ابوداؤد، سنن النسآیی)
عن ابن عمر - رضي الله عنهما - قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلّم «مَن سقى ولده شربة ماء في صغره، سقاه الله سبعين شربة من ماء الكوثر يوم القيامة» (رواه الحافظ أبو نعيم في حليةالأولياء و كنزالعمال و قال هذا حديث غريب).
ژباړه: د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: چا چې په وړوکتوب کې په خپل بچي یو غړپ اوبه و څښلې، الله تعالی به د قیامت په ورځ د حوض کوثر نه اویا غړپه اوبه ور وڅښي.

**اولاد ته د نفقې برابرولو اجر:**

جناب نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمايي «دِينَارٌ أَنْفَقْتَهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ، وَدِينار أَنْفَقْتَهُ فِي رَقَبَةٍ ، وَدِينارٌ تَصَدَّقْتَ بِهِ عَلَى مِسْكِينٍ ، وَدِينَارٌ أَنْفَقْتَهُ عَلَى أَهْلِكَ ، أعْظَمُهَا أَجْراً الَّذِي أَنْفَقْتَهُ عَلَى أَهْلِكَ» ( رواه مسلم).
يعنې : یو هغه دینار دی چې د الله (جل جلا له) په لار کې صدقه شي ، بل هغه دینار دی چې غلام باندې مصرف شي ، او بل هغه دینار دی چې په مسکین

باندې صدقه شي ، او بل هغه دینار چې پخپل اهل خرڅ شي ، تر ټولو د هغه اجر زیات دی کوم چې د خپل اهل د پاره نفقه او خرڅ شي.
بل حدیث کې راغلي : «إِذَا أَنْفَقَ الرَّجُلُ عَلَى أَهْلِهِ يَحْتَسِبُهَا فَهُوَ لَهُ صَدَقَةٌ» . (بخارى:۵۵).
ابـن مسـعود رضـی الله عنـه وایـي جنـاب رسـول الله صـلی الله علیـه وسلم فرمايي : كه څوک د ثواب په نيت پخپل اهل او عيال خرڅ وکړي د هغه دا نفقه کول صدقه شمیرل کیږي.
**نظافت** :نظافت او پاکي په اسلام کې زیات اهمیت لري ، الله سبحانه وتعالى خپل پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته حکم کوي چې :[ وثيابك فطهر] (او جامه دي پاکه ساته) .
نظافت د ایمان یوه برخه ده : « الطُّهُورُ شَطْرُ الإِيْمَانِ».
نظافت د ژوند یو مهم عنصر دی ، مور ته پکار ده چې د خپلو اولادونو نظافت ته پوره پام وکړي ، په نظافت کې غفلت کول لاندې بد اثرات لري :
۱- د ماشومانو دوماغ کمزوری وي چې په لږ شي ډیر څوریږي کله چې ماشوم خپل ځان د نورو په نسبت ناپاک او خیرل ویني نو په دې باندې زيات ځوريږي او هغه د فکري نا آرامې سره مخ کيږي .
۲- د مرضونو مخ نیوی ورباندې کیږي .
والدینو ته پکار ده چې خپل بچیان په دې وپوهوي چې نظافت په دوه ډوله دی:

باطني نظافت : خپل زړه له رزيلو او ناوړلو اخلاقو څخه پاکول .

ظاهري نظافت : لکه:جامې پاک ساتل ، د بدن پاک ساتل ، غسل کول ، د سر ويښتانو کمول او خريل او د بلوغ سن ته د رسيدو پر مهال د شرمګاه او تخرګ د ويښتان لرې کول،او د خولې او ښاغونو پاک ساتل ځکه خوله د معدې لاره ده او معده د ټول بدن لاره ده .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : «السواک مطهرة للفم مرضاة للرب» (رواه احمد، نسائي وسنن دارمي ) .

يعنې: مسواک وهل د خولې پاکونکی او الله تعالى لره خوشحالونکی دی .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«لولا أن أشق على أمتي لأمرتهم عند كل صلاة بوضوء، ومع كل وضوء بسواك» (رواه أحمد بإسناد صحيح).

يعنې : که زما امت ته مشکل او تکليف نه وای دوی ته به مې د هر لمانځه لپاره د اودس کولو او د هر اودس سره مسواک وهلو حکم کړی وای .

**لوبې او تمرينات**

د ماشومانو لپاره لوبې او ځينې تمرينات کول صحي ، جسمي او فکري ګټې لري په شرط ددې چې اعتدال پکې وي او د شريعت د پولو څخه تيری پکې نه وي لکه :

١- د ديني او دينوي واجباتو د ترک ، ضايع کېدو او نقصان سبب نشي .

لکه : د علم زده کړه ، لمونځ ، کورنی کار او نورو واجباتو د ترک او نقصان سبب نشي .

۲- د صالح نیت د پاره وي تر څو بدن ورباندې قوي شي او د الله تعالی پوره بندګي وشي .
۳- عورت پکې ساتل شوی وي .
۴- د والدینو او نږدې خپلوانو له چارنې لرې نه وي .

## لسم فصل

### د اولاد په تربیه کې ځینې غلط اسلوب او طریقې

ځینې والدین د اولاد په تربیه کې نا مناسبې او غلطې لارې غوره کوي چې هغه یا د جهل او ناپوهۍ له وجې وي یا د خپلو والدین او اجداد څخه میراثي وي او یا د ټولنې د غلطو رواجونو نتجه وي .
په هر صورت دغه اسلوب او لارې د طفل په تربیه باندې سخت بد اثر کوي چې ځینې په لاندې ډول دي :

**اول – په تسلط کې له حده تیری :**

داسې چې پلار یا مور خپل اولاد په هیڅ صورت کې خپلې خوښې ته نه پریږدي که څه هم مشروع وي او په طفل باندې د داسې څه تحمل او بارول چې د هغه د قدرت او توان څخه لوړ وي او د نه کولو په صورت کې د هغه تحقیر او رټل چې دا طریقه د طفل په تربیه باندې لاندې اثرات لري:
الف): د جرأت له لاسه ورکول او د نورو کسانو پر وړاندې بې حده خضوع ، اتباع او عاجزي کول .
ب ): دائم په ویره او ډار کې اوسېدل او خجالت احساسول .

ج) : پخپل نفس اعتماد له لاسه ورکول ،دائم د نیمګړتیا احساس .
د): د داسې اسلوبو او طریقې له اختیارولو سره په طفل کې د کینې او عداوت پیدا کېدل چې بلاخره طفل د خرابکاری او ضرر رسولو لاره اختیاروي. .

**دوهم-ناحقه حمایت او ننګه :**

دا چې والدین د خپلو اولادونو د مسئولیتونو په مخ کې ولاړ وي د هغوی په کورنۍ کار کې مداخله کوي ، طفل ته ددې فرصت نه ورکوي څو خپل مسئولیت ادا کړي ،معلم ته واسطه کوي څو د لیاقت پرته لوړې نمرې تر لاسه کړي او یا په ناحقه د طفل دفاع کوي ، مشکل په طفل کې وي خو بار یې پر معلم اچوي .

دا طریقه د طفل په تربیه باندې خطرناک اثرات لري ځکه چې طفل ددې قدرت له لاسه ورکوي چې خپل مسئولیت پخپله ادا کړي او کله چې لوی شي د مکلفیت او مسئولیت احساس نه کوي چې په دې سره له زیاتو مشکلاتو سره مخ کیږي .

**دریم – غفلت :**

د اولاد د تربیې په حصه کې د والدینو غفلت کول ، د هغوی څارنه نه کول ، هغوی ته په نیکو کارونو امر نه کول او له بدو کارونو څخه د هغوی نه منع کول ، د دیني واجباتو ، درس او د درس د کورني کار په اړه پوښتنه نه کول او د هغوی سره حساب او محاسبه نه کول .

ځکه چې پلار یې یو شپه له کوره وځي او بله شپه په داسې حال کې کور ته راځي چې اولادونه یې بیده وي ، مور هم یا کارونو ، یا د تلیوزیون په تماشا او یا په نور څه مشغوله وي او د اولاد تربیه ته هیڅ پام نه کوي.
کله چې هغوی د خطرناکو عواقبو سره مخ شي ، بل ته ضرر ورسوي ، کوم بد کار وکړي او یا په درس او تعلیم کې ناکام یا ټیټې نمري یوسي نو هغوی خجالت اختیاروي او عجیبه دا چې بیا خپله ملامتیا پر اولاد ور اچوي هغوی تحقیروي بد رد ورته وایي چې په دې سره اولادونه د خپل والدین محبت له لاسه ورکوي ، د یوازې والی احساس کوي ، نور ته ځان محتاج احساسوي

**څلورم – غیرعادلانه تشویق او ترغیب :**

متأسفانه دا عادت په ډیرو والدینو کې شته چې په ناحقه خپل اولاد د نورو په اولادونو پورته کوي ، کچیرې ګاونډي او نورو ته ضرر ورسوي د نورو اطفال ووهي نو والدین یې ورته خاندې او هغوی د دغه ناوړه کار څخه نه منع کوي .
همدارنګه کلپ ته یې د عادلانه تمرین او روغتیا په نیت نه لیږي بلکي ددې لپاره یې کلپ ته لیږي چه یو پهلوان ورڅخه جوړاو بیا یې د یوه جنګي سپي په څیر وجنګوي، نو بیا چه دغه ډول ناولی اولاد را لوی شي د کورنی لپاره خو څه چه د ټولنې لپاره به لوی غم ور څخه جوړ شي.

**پنځم – د ماده پرستۍ عقیده :**

ځينې والـدين خپلـو اولادونـو بانـدې د خـوراک او څښـاک او نفقې برابرولـو منـت اچـوي ، هغـوی چې کلـه د ډوډۍ خوړلـو لپـاره را جمـع شي نـو د ډوډۍ خوړلو پر مهال ورته وايي : ای ډوډۍ خوره ! ولی داسې او هغسې کوې ،او يا يې هم د ډوډۍ خوړلو پر مهال وهي ، ای ډوډۍ خوره يوازې ډوډۍ خوړلـو تـه ښه تيار يې نور د هيڅ کار نه يې .

دا چې اطفـالو تـه د توکل ، او دا چې الله تعـالی د ټولـو ژونـديو روزې ورکـونکی دی  فکـر او ذهنيـت پـر ځـای داسې فکـر او ذهنيـت ورکـول چې د نفقې پيـدا کـول ډيـر سخت کار دی ، او په دنيـا کې د انسـان اصلي هـدف د پيسـو پيـدا کول ، خوراک او څښاک دی (الغياذ بالله) .

حـال دا چې پـه دنيـا کـې د انسـان د ژونـد هـدف د الله تعـالی عبـادت او فرمابرداري کول دي ، الله سبحانه وتعالی فرمايي : :[وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ] (الذاريات: ۵۶) .

ژباړه: او نه مو دي پيدا کړي پيريان او انسانان مګر دا چې عبادت وکړي زما .

**شپږم – د واحد هدف او تګلياري نه اتنخاب :**

د واحـدې تګليـارې پـر ځـای د مذبذبې تګليـارې اختيـارول داسې چې يـو ځل يـو عمل ښه ګڼې خو بل ځل يې بد ګڼې .

مثلاً اطفـال چې د خپلـو والـدينو پـه مخ کې څـه کـوي نـو هغـوی ورتـه خانـدې مګـر د ميلمنـو او نـورو پـه مخکې د همغـه کـار پـه کولـو هغـوی تحقيـروي او هغوی ته رد بد وايي .

چې په دې سره طفل حیران شي چې کوم کار صحي او کوم غلط دی له طفل څخه د ښه او بد د تمیز کولو لاره ورکه شي .

**اوم- د اولادنو ترمینځ بې عدالتي :**

والدین به د اولادنو تر مینځ په سلوک ، ورکړه او نور کې عدالت کوي ، تولو سره به په انصاف او برابری سره سلوک کوي ، داسې نه چې یو ښه پالل کیږي او بل محروم وي ځکه چې داسې کول د هغوی تر مینځ د بغض او کینې سبب ګرځي .

عَنْ النُّعْمَان بْنَ بَشِيرٍ رَضِي اللَّه عَنْهمَا قال: أَعْطَانِي أَبِي عَطِيَّةً، فَقَالَتْ عَمْرَةُ بِنْتُ رَوَاحَةَ: لا أَرْضَى حَتَّى تُشْهِدَ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم ' فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ: إِنِّي أَعْطَيْتُ ابْنِي مِنْ عَمْرَةَ بِنْتِ رَوَاحَةَ عَطِيَّةً، فَأَمَرَتْنِي أَنْ أُشْهِدَكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ: «أَعْطَيْتَ سَائِرَ وَلَدِكَ مِثْلَ هَذَا»؟ قَالَ: لا قَالَ: «فَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْدِلُوا بَيْنَ أَوْلادِكُمْ» قَالَ: فَرَجَعَ فَرَدَّ عَطِيَّتَهُ. (صحيح البخاری).

ژباړه : نعمان بن بشیر رضي الله عنهما وایې: پلار مې ماته یو شی هدیه کړل ، عمرة بنت رواحه (مور مې) وویل: ترهغه به راضی نه شم ترڅو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ورباندې شاهد شوی نه وي ، پس پلار مې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورغی ورته وېې وویل: زوی مې چې له رواحه نه دی یو شی مې ورته هدیه کړل مګر مور یې دا تأقید کړی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به شاهد نیسي .

رسو ل الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: آیا تا ټولو زامنو ته همدا ډول هدیه ورکړې ده هغی وویل: نه ، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: له الله تعالی څخه وویرېږه! او د زامنو تر مینځ عدالت سره رفتار وکړه ورسته مې پلار وګرځید او هدیه یې واپس واخیسته .

**د اولاد د تربیت په باره کې مهم وصیتونه:**

۱- د ځینې ښځو عادت وي چې خپل اولاد په سپي ، پشو او نورو ځناورو وېروي ، د داسې خبرو څخه پرهیز کول پکار دی ځکه چې په دې خبرو د هغوی زړونه کمزورې کیږي .

۲- د پی او خوراک ورکولو لپاره د وخت مقررول د هغوی روغتیا ته ګټه رسوي .

۳- طفل مو چې کله ژاړي نو هغوی ته مه په غصه کیږئ ، کیدای شي وږی یا تږی وي نو د هغه مړول پکار دي ، یا کیدای شي خوب ورځې د هغه بیده کول پکار دي ، یا کیدای شي ناروغ وي د هغه درملنه کول پکار دي ، اکثره اطفال چې ژاړي ، د لوږې ، تندې ، خوب ورتللو او مرض له وجې ژاړې .

۴- هغه پاک ساتئ تر څو صحت مند او روغ وي .

۵- د هغه ډیر سینګار په کار نه دی .

۶- کچېرې هلک وي نو د هغه لوی لوی ویښتان پریښودل پکار نه دي .

۷- د اولادونو په لاس باندې غریبانو ته خیرات ورکول تر څو په سخاوت باندې عادت شي .

۸- هلکانو ته داسې جامې مه وراغوندې چې د شریعت خلاف وي ، تصویرونه ورباندې کښل شوي وي یا سور رنګ وي او نجونو ته بې حجابه جامې چې تنګې یا نرۍ وي یا د فاسقانو او کافرانو سره مشابهت ولري مه وراغوندئ او ځان ته دا دلیل مه نیسئ چې دا خو نابالغ دي ځکه کله چې بالغ شي همدا به یې عادت جوړ شي .

۹- د هغوی ټول ضدونه مه پوره کوئ ځکه چې په دې سره یې طبیعت خرابیږي .

۱۰- په چیغو او زوره خبرو کولو یې منع کړئ په خاصه توګه نجونې ځکه چې کله لویې شي همدا به یې عادت شي .

۱۱- د غصې ، درواغ ، حرص ، بخل ، غلا کولو ، بې ګټې خبرې ، زیات خندل ، کبر او غرر او ټوقو او مسخرو او نورو حرامو کارونو څخه د هغوی منع کول او په ښو کارونو عادت ورکول .

۱۲- کچیرې نقصان پیښ کړي یا چاته ضرر ورسوي نو هغه ته مناسبه سزا ورکول پکار دي ، په دا ډول کارونو کې د اولاد مینه او د هغه ننګه کول اولاد تباه کوي .

۱۳- د ډیر خوب څخه د هغوی منع کول . او د وختي بیداریدو عادت ورکول .

۱۴- د مدرسې او مکتب له تللو څخه مخکې هغوی ته قرآن ور زده کول .

۱۵- هغوی ته د کامل استاذ او قاري انتخاب ځکه که په پیل کې تلفظ او احکام غلط زده کړي نو د هغه اصلاح به بیا ډیره مشکله وي .

۱۶- هغوی ته د عشقي کتابونو ، فلمونو ، سریالونو ، ګیم ، موسیقۍ او بې حجابه تصویرونو څخه منع کول .
۱۷-خپل بچیان په کار باندې عادت کول او له سستی او تمبلی څخه د هغوی ساتل ، هغوی ته ویل : چې خپله بستره پخپله ځانته وغړوي ، سهار یې خپله توله کړي ، خپل کالي خپله واغوندې او خپله یې وباسي او داسې نور .
۱۸- کله چې د هغوی څخه ښه خبره او ښه کار ولیدل شي د هغوی تشویق او ترغیب او څه انعام ورکول .
۱۹- بچیان مو په پټه څه کار کولو ته مه پرېږدئ ځکه هغوی چې کوم کار په پټه کوي نو پوه شئ چې هغه بد کار دی .
۲۰- هغوی ته د څه کار او مسئولیت ور سپارل تر څو اراده او همت یې لوړ شي .
۲۱- هغه ته د پورته بیان شویو اخلاقو او آدابو ور زده کول .
۲۲- د هغوی په مخ کې د بې حیایی کار ، یا کوروالـه کولو څخه پرهیز کول کـه څـه سـن یـې دومـره کـم وي چې خبرې نشي کولای ځکـه چې د هغـه تصویر یې په دماغ کې پاتې کیږي .
۲۳- داسې عادت ورکول چې پخپله خبره به ټینګ نه دریږي بلکي د حق خبره به اروي که څه هم د ده څخه د یو کمزوري کس وي .
۲۴- پخپله غلطۍ باندې د اعتراف کولو عادت ورکول .
۲۵- د اولاد د اصلاح او هدایت لپاره دعا کول .

۲۶- د نږدې والي په وخت کې بسم الله ویل او د شیطان د شر او ضرر څخه پناه غوښتل او دغه مسونه دعا ویل : «بِسْمِ اللهِ، اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ، وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا».

ژباړه: بسم الله . ای الله ! ما د شیطان له شر څخه وساتې ، او هغه اولاد چې ما ته یې راکوې د شیطان له شره وساتې .

۲۷- د اولادونو له اهانت او تحقیرولو څخه پرهیز کول .

۲۸- د بدو او نا وړه الفاظو کارولو څخه پرهیز کول .

۲۹- د مشر زوی یا مشرې لور په تربیت کې ډیر اهتمام کول تر څو د نورو اولادونو تربیت ورسره ښه شي .

(زیور بهشتي / حکیم امت تهانوي ، تربية الأولاد على الآداب الشريعة / عبدالرحمن بن عايد).

## د اولاد تربیه د والدینو دیني مسئولیت دی

پورته مو چې د اولاد دیني ، اخلاقي او بدني تربیه په اړه څه ولوستل مستحبات نه دي چې که څوک یې تر سره کړي ښه او که یې پرېږدي باک نلري بلکي دا د والدین واجبي مسئولیت دی او د دوی څخه به یې په اړه پوښتنه کیږي .

جناب رسول اللَّهِ صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، الإِمَامُ رَاعٍ وَمَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، وَالرَّجُلُ رَاعٍ فِي أَهْلِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ

رَعِيَّتِهِ، وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا وَمَسْئُولَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا، وَالْخَادِمُ رَاعٍ فِي مَالِ سَيِّدِهِ وَمَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ». (بخاری:853).

ژباړه: هر يو د تاسې راعی (شپون ) دی او هر يو د تاسې د خپل رعيت (لاس لاندې کسانو ) په برخه کې مسئول دي )د رعيت په اړه به له ده څخه پوښتنه کيږي ) . د ټولنې رهبر د خپل رعيت شپون او د خپل رعيت مسئول دی ، سړی د خپل کور د اهل مسئول دی ،ښځه د ميړه په کور کې د خپل اولاد شپنه او مسئوله ده ، خادم د مالک په مال کې شپون دی او په دغه باره کې مسئول دی.

**ای پلاره !** ته د کور مسئول يې ستا نه د خپل اهل عيال په باب پوښتنه کيږي.

**ای مورې !** ته د پلار په غيابت کې د کور مسئوله يې ستا نه به د خپل اولاد په باب پوښتنه کيږي.

کور مسئوليت دی ځکه الله تعالی فرمايي: [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَاراً ].

ژباړه: ای مؤمنانو! خپل ځانونه او خپل اهل عيال مو د دوزخ له اوره وساتئ .

په هر مسلمان باندې د خپل توان موافق أمر بالمعروف او نهی عن المنکر واجب دی ، د کور د ننه أمر بالمعروف او نهی عن المنکر په والدينو باندې فرض عين دي ځکه چې د هغوی په کور کې بل څوک مداخله نشي کولای او يا له احوالو خبر نه دي .

امر بالمعروف او نهی عن المنکر ( په ښو کارونو باندې امر کول او له بدو کارونو څخه منع کول ) په نارینه او ښځه باندې واجب دی ، لقوله سبحانه وتعالی : وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلاَةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَيُطِيعُونَ اللّهَ وَرَسُولَهُ أُوْلَـئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللّهُ إِنَّ اللّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ (التوبه ٧١ )

ژباړه : او مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې ځينې د ځينو نورو دوستان دي امر کوي په نيکی او له بدليو نه خلک منع کوي لمونځ ودروي زکات ورکوي او د الله او د هغه د رسول الله اطاعت کوي پر همدغو خلکو به الله ډير ژر مهرباني وکړي .

امر بالمعروف او نهی عن المنکر د مؤمنانو له مهمو صفاتو څخه ستر صفت بلل کيږي چې د همدې صفت په وجه له منافقانو څخه جلا کيږي .

التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ السَّاجِدونَ الآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللّهِ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ (التوبه ١١٢ ) .

ژباړه : هغوی توبه کوونکي ،عبادت کوونکي ، ثناويونکي ، د الله په ليار کې وتوونکي ، رکوع او سجده کوونکي ، د نيکيو په لور بلونکي او له بديو منع کوونکي او د الله د حدودو ساتونکي دي (ای پيغمبره !) زيری ورکړه مؤمنانو ته .

الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ بَعْضُهُم مِّن بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمُنكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوفِ وَيَقْبِضُونَ أَيْدِيَهُمْ نَسُواْ اللّهَ فَنَسِيَهُمْ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ هُمُ الْفَاسِقُونَ (التوبه ۶۷ )

.

ژباړه : منافقان سړي او منافقانې ښځې ځینې له ځینو نورو نه دي هغوی د بدی په لور بلنه او له نیکی نه منع کوي ، خپل لاسونه له نېکیو نه تړي الله یې هېر کړ نو الله هم هغوی هېر کړل په رښتیا چې همدا منافقان فاسقان دي .

ځینې مسلمانې خوندې دا فکر کوي چې د امربالمعروف او نهي عن المنکر دنده او مسئولیت یوازې د نارینه دی ، خو داسې بالکل نه ده بلکي دا مسئولیت د امت هر کس ته د خپل وس موافق که نارینه وي یا ښځینه متوجه دی ، فقط دومره خبره ده چې په دې کار کې د ښځې په نسبت سره د نارینه دائره او مسئولیت پراخه او ستر دی ، لکن مسلمانه بې بې د ښځو په مجالسو او محافلو کې ، د خپلوالو ، کورنۍ او اولادونو پر وړاندې پوره مسئولیت لري او هغوی ته به امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوي .

لقوله رسول الله صلی الله علیه وسلم : كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ (هر یو د تاسې راعی (شپون ) دی او هر یو د تاسې د خپل رعیت (لاس لاندې کسانو ) په برخه کې مسئول دي .

دا حکم د اسلامي امت ټولو کسانو ته که نارینه دي او که ښځې علماء دي او که عوام متوجه دی .

همدارنګه جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا وَمَسْئُولَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا... (بخاری:853)

يعنې : ښځه د خاوند په کور کې شپونکې ده هغه د خپل لاس لاندې کسان په باره کې مسئوله ده .

**مسلمانې بې بې !**

**د اسلام قدرداني موری !**

**د اسلام نازولېې ، با وقاره او پاکدامنه خورې !**

ته هم سر له نن څخه دغه ستر مسئولیت ته چې د پیغمبرانو علیهم السلام دنده ده متوجه شه ، که الله تعالی د ستا په لاس باندې یوازې یوې ښځې ته او خپل اولاد ته دې هدایت وکړي هغه د ستا د پاره تر هر څه غوره دي .

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : لأَنْ يَهْدِيَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى يَدَيْكَ رَجُلا خَيْرٌ لَكَ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ وَغَرَبَتْ.(الطبراني ).

له ابی نافع نه روایت چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : که الله ستاسو د لاس څخه یو بنده ته هدایت وکړي ستاسو دپاره د ټولو کائیناتو نه چې پری لمر راخیږي او پرېوزی غوره دی ( طبرانی ) .

او فرمايي : عَنْ سَهْلِ بن سعد، رضي اللَّه عنْه، أنَّ النبي صَلّى اللّهُ عَلَيْهِ وسَلَّم قَالَ لِعَلي، رضي اللَّه عنْه: « فو اللَّهِ لأنْ يهْدِيَ اللَّه بِكَ رجُلاً واحِداً خَيْرٌ لكَ من حُمْرِ النَّعم » (متفقٌ عليهِ).

له سهل بن سعید رضی الله عنه نه روایت چې رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت علی رضی الله عنه ته وفرمایل :

په الله سوګند دی که چیرې ستا په لاس الله تعالی یو کس ته هدایت وکړي ستا د پاره تر سورو اوښانو بهتر دی .

عن أبي هريرة؛ أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال "من دعا إلى هدى، كان له من الأجر مثل أجور من تبعه، لا ينقص ذلك من أجورهم شيئا. (مسلم: ٢٦٧٤ ) .

له ابی هریرة نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :کوم بنده چې د نیکی طرف ته خلقو ته دعوت ورکړو نو ده لره به د هغو ټولو خلقو هومره اجر او ثواب وي څوک چه د ده د دعوت سره یې نیک عمل شروع کړی وي .او ددې نیک عمل کونکو له عمله به هیڅ نه کمیږي.

**مسلمانې خورې !**

**د اسلام با وقاره غزمندې خورې !**

د پورته شرعي نصوصو څخه څرګنده شوه چې د اولاد اسلامي او اخلاقي تربیه ستا مسئولیت شو او په خاص توګه چې کله مو خاوند غالب وي .

نن زمونږ د ټولنې د فساد یو وجه همدا ده چې د خپلو اولادو اسلامي تربیې او روزنې ته مو پام نه دی شوی ، کچیرې د کور اهل اصلاح شي کوچه ، کلی او بلاخره ټولنه به خامخا اصلاح وي .

مسلمانې خورې نن څو ورځې له خپل اولاد سره تکلیف او زحمت تیر کړه ، هغوی له بدو کارونو څخه په کلکه منع او ښو کارونو ته یې تشویق کړه ، جومات ته یې د قرآن او د دین د زده کړې د پاره ولیږه ، اسلامي تربیه ور وښیه ، د اطاعات په حصه یې کلک وځاره ، کوچه کشتی ، د فاسدو خلکو له ملګری ، د فلمونو ، سریالونو څخه یې وژغره ، د څو ورځو د تکلیف په وجه به ټول عمر آرامه سرلوړې او په دنیا او آخرت کې ور باندې خوشحاله او افتخار کوونکي وې .

او که نن ورځ دې غفلت او سستي وکړه چې زما د سر څخه چپ وي ، زه آرام ومه ، ولو که په کوڅو کې ګرځي ، ولو که ګیم وکړي ولو که سریال او فلم ته کینې ولو که جومات ته نه ځي ولو که د دین څخه بالکل ناخبره وي خو چې زما د سر نه چپ وي او زه آرامه وم او ماته شور او غالمغال ونه کړي ، نو پوه شه چې دا د څو ورځو غفلت او سستي به د ټول عمر غم وګرځي .

یو دا چې د الله تعالی پر وړاندې به مسئوله وې او بل دا چې د اولاد څخه به دې داسې لندغر جوړ شي چې والدین ، کور خو څه کوې چې د ټولې کوڅې ، ټول کلي او ولس د پاره به غم او تکلیف وي .

**قدرمنې او غزتمندې بې بې مورۍ !**

مور په انسانو کې د تخم حیثیت لري که تخم سالم وي نباتات به هم سالم وي او که تخم خراب شو نباتات او د هغه حاصلات به ټول خراب شي ، د

ټولنې ټول کسان په لومړې دور کې د مور د زانګو له مدرسې څخه فارغ شوي دي ، که دا مدرسه سالمه شوه ټولنه به خامخا سالمه وي .

و ما توفيقي الا بالله عليه توكلت واليه انيب

**يوازې د ځان په اصلاح کې نجات نشته**

يوازې د ځان په اصلاح باندې بسوالی او د خپلو ماتحتو د اصلاح په ترکولو کې نجات نشته . بلکي مسلمان به د خپل ځان د اصلاح سربيره د خپلې ښځې ، اولادونو او ماتحتو د اصلاح کوښښ کوي .

لقوله سبحانه وتعالى : نو الله سبحانه وتعالى فرمايي : [وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ *إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ]

ژباړه: قسم دی په زمانه يقيناً ټول انسان په زيان او خسران کې دي ، پرته له هغو کسان چې ايمان راوړی او نيک عملونه يې کړي وي او يو تر بله يې وصيت کړی وي په حق سره او وصيت يې کړی وي په صبر سره.

**تشريح :**

الله سبحانه وتعالى په زمانه باندې قسم کړی دی چې : [وَالْعَصْرِ] د څه لپاره ؟ ددې لپاره چې زمانه زيات اهميت لري، په دې دنيا کې د انسان ژوند او د هغه لپاره د ټولو موجوده کائيناتو تسخير زيات اهميت لري او د ستر هدف لپاره دغه فاني دنيا ته راغلی دی ، کچيرې دغه څو ورځې ژوند تير شي نو بيا هيڅکله نه راګرځي ، دوهم او دريم چانس نلري..

په دنيا کې د انسان د ژوند هدف د خپل خالق ، رازق او پالونکي عبادت دی..
الله سبحانه وتعالی فرمايي: [وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ] (الذاريات: ۵۶ ).
ژباړه : او نه مو دي پيدا کړي پيريان او انسانان مګر دا چې عبادت وکړي زما.
او فرمايي: [اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ * الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً وَأَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَّكُمْ فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَندَادًا وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ] (البقرة: ۲۱، ۲۲).
ژباړه: عبادت وکړئ د هغه رب چې تاسې او له تاسې څخه مخکې ټول خلک يې پيدا کړي دي ، تر څو تاسې پرهيزګاران شئ .هغه ذات چې ستاسو لپاره يې ځمکه وغوړوله ، آسمان يې چت جوړ کړ او له پاسه يې اوبه را ښکته کړې ، په اوبو سره يې ستاسې د خوراک لپاره ډول ډول مېوې را وښکلې . نو بايد تاسې هم له الله پاک سره نور څيزونه برخه من ونه ګرځوئ.
مګر ډېرو انسانانو د خپل ژوند هدف ونه پېژندلو چې زه د څه لپاره پيدا شوی يم او مسئوليت مې څه دی ؟
نو الله سبحانه وتعالی فرمايي : [وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ] ( قسم دی په زمانه يقيناً ټول انسان په زيان او خسران کې دي ).
زيات شمير انسانان ګمراه شوي دي.
مګر يوازې هغه کسان کامياب دي چې څلور صفات ولري او دا څلور دورې ټولې پوره کړي.

[إِلَّا الَّـذِينَ آمَنُـوا وَعَمِلُـوا الصَّـالِحَاتِ وَتَوَاصَـوْا بِـالْحَقِّ وَتَوَاصَـوْا بِالصَّـبْرِ ] (العصـــــــــــر ١-٣).

ژباړه : (پرته له هغو کسان چې ايمان راوړی او نيک عملونه يې کړي وي او يو تر بله يې وصيت کړی وي په حق سره او وصيت يې کړی وي په صبر سره ).

**اول صفت:**

هغه کسان کامياب دي چې ايمان راوړي او پخپل ايمان کلک ودريږي.

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [إن الذين قالوا ربنا الله ثم استقاموا تتنزل عليهم الملائكة ألا تخافوا ولا تحزنوا وأبشروا بالجنة التي كنتم توعدون] (فصلت: ٣٠).

ژباړه : يقيناً هغه کسان چې وېې ويل : الله زمونږ رب دی او بيا (پر خپل ايمان) ټينګ ودريدل ، دوی ته به پرښتې وليږل شي ( او ور ته به ووايي : ) مه وېرېږئ او مه خفه کيږئ او په هغه جنت کې خوشحاله شئ چې تاسې ته يې ژمنه شوې وه .

او دغه زېری به د ځانکندن پر مهال ، قبر او بعثت کې ورکول کيږي.

**دوهم صفت:**

صالح اعمال ترسره کړي چې د ريا او نفاق څخه پاک وي لکه لمونځ ، زکات ، روژه ، حج او نور.

او هر عمل صالح د قبول لپاره دا شرط دی چې په هغه کې به اخلاص وي يعني يوازې د الله تعالى لپاره به وي رياء پکې نه وي او بل په هر عمل صالح کې

د رسول صلی الله علیه وسلم متابعت شرط دی یعنې د هغه په طریقه سره به وي د اسلامي شریعت موافق به وي.

یعنې د ایمان راوړلو وروسته نجات او بری نشي موندای څو پورې چې د الله تعالی اوامر پر ځای نه کړي د عمل الصاحات په سر کې لمونځ قرار لري ، کچېرې د بنده لمونځ صحي وو نور اعمال یې هم صحي دي او د قیامت په ورځ د لمانځه له مخې د نورو اعمالو تلل دي او که لمونځ خراب وو ټول دنیوي او آخروي مسئولیتونه او کارونه یې خراب دي ، د لمانځه کمال په جومات کې په جماعت سره ادا کول او د ښځې لپاره پخپل کور کې په پخپل وخت لمونځ کول دي.

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه خپلو امراء او والیانو ته ولیکل : «إنَّ أهم أمركم عندي الصلاة فمن حفظها فقد حفظ دينه، ومن ضيّعها فهو لما سواها أضيع، ومن المحافظة عليها أداؤها جماعة فی المسجد »( ابن القيم الجوزية ص ۴۰۳.۴۰۴).

ژباړه : تر ټولو مهم د تاسې له أمور څخه ماته لمونځ دی ،پس هر چا چې د هغه حفاظت وکړ هغې خپل دین وساتلو او څوک چې هغه ضایع کړي هغه ته د نورو شیانو ضایع کول آسان دي او د هغه محافظت دا دی چې لمونځ په جمع په جومات کې ادا شي.

**دریم صفت :**

التواصي بالحق (په حق سره توصیه ده ) ځکه چې دین نصیحت دی ، د مؤمنانو سړیو او مؤمنو ښځو دا صفت دی چې هغوی به په نیکی أمر کوي او له بدی څخه به خلک منع کوي.

لقوله سبحانه وتعالی :[وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ ..] (التوبه ۷۱ ).

ژباړه : او مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې ځینې د ځینو نورو دوستان دي امر کوي په نیکی او له بدلیو نه خلک منع کوي.

د کور مشر او مشره دیني مسئولیت لري چې خپلو اولادونو ته په نیکی أمر وکړي هغوی ته د شرعي علم زمینه برابره کړي تر څو د خپل خالق ، خپلو والدینو ، خپل ځان او نور مخلوق حقوق وپیژني او د هغه د ټولو دیني امورو څارنه وکړي

او له بدو کارونو څخه منع کړي.

اوس کچېرې یو سړی پوره پرهیزکاره وي خو د خپلو ماتحتو د پرهیزکاری هیڅ خیال او فکر ورسره نه وي دا سړی بری نشي موندای ولې ؟ ځکه په ده کې د [التواصي بالحق] صفت نشته .

**خلورم صفت :**

التواصي بالصبر (په صبر باندې توصیه کول) ، او صبر دری مراتب لري.

١ -په طاعاتو باندې صبر کول ځکه چې په دې کې څه مشقت شته نو د اطاعت په ادا کولو کې صبر ته ضرورت دی ، لقوله سبحانه وتعالى : [رَبُّ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهِ هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ] (مريم: ٦٥).

ژباړه: د آسمانونو او ځمکې او هغو ټولو شيانو رب دی چې د دواړو په مينځ کې دي ، نو يوازې د هغه عبادت کوه او صبر کوه په عبادت د دغه (الله) کې ، آيا پيژنې ته ده ته کوم هم نام ؟ (بلکه نه يې لري ).

٢ -په ګناهونو باندې صبر کول ، نفس اماره هميشه انسان د بدو کارونو وسواس وراچوي نو مسلمان ته پکار ده چې د خواهشاتو څخه په پوره صبر سره پرهيز وکړي ځکه چې د شهواتو لاره د دوزخ لاره ده ،رسول صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«وحفت النار بالشهوات»(او دوزخ په شهوتونو پوښل شوى دى )

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [فَأَمَّا مَنْ طَغَى * وَآثَرَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا * فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوَى * وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوَى * فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوَى ] (النازعات: 37 – 41).

ژباړه: (او چا چې سرغړونه کړې وي . او دنيا ژوند يې په هر څه غوره ګڼلې وي نو دوزخ يې د ورتګ ځاى دى او څوک چې د خپل رب له مخامخ کېدو څخه ډار شوي وي او ځانونه يې له نفسي او شهوانې هيلو ساتلې وي نو جنت يې د ورتګ ځاى دى).

۳ -د حق توصیه او د حق بیان او په نیکو کارونو امر کول او له بدو کارونو څخه منع کول له مشکلاتو سره تړلې دي نو په دې مشکلاتو باندې صبر کول پکار دي ځکه چې دا لوی کار دی ، د پیغمبرانو علیه السلام لاره ده سترې حوصلې او استقامت ته ضرورت لري.

۴ -د الله تعالی په تقدیراتو باندې راضي کیدل ، په مشکلاتو او مصیبوتو باندې صبر کول ځکه چې دا امتحان دی.

[ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ وَنَقْصٍ مِنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنْفُسِ وَالثَّمَرَاتِ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ * الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُمْ مُصِيبَةٌ قَالُوا إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ ] (البقرة: 155، 156).

ژباړه : (او خامخا به آزمیو تاسو په ډار ، لوږې د مالونو ځانونو او د میوو په کموالي او صبر کوونکو ته زیری ورکړه . هغه کسان چې کله کوم ور ورسیږي وایي چې : مونږ ټول د الله یو او مونږ ټول به هغه ته بیا ور ګرځو ).

و ماتوفیقي الا بالله علیه توکلت و الیه انیب

و صلی الله تعالی علی النبی صلی الله علیه وسلم و اله و صحابه اجمعین

حمدالله شاکري